مکمل و مدلل
د تراويحو مسئلې
سره
د وترو او د تراويحو د امامت له مسئلو
د قرآن او احاديثو په رڼا کښې
مؤلف
مولانا رفعت قاسمي
مدرس دار العلوم ديوبند
مکتبه رشيديه
سرکي روډ کوټه

د کتاب پیژندنه:

نوم: .................... دتراویحو مسئلې

مؤلف: .................... مولانا محمد رفعت قاسمي

ژباړن: .................... مفتي محمد ابراهیم خلیل

کمپوز او کره کتنه: ........ مولوي عبدالغني «ساجد»

ګرځنده ټیلفون: .................. ۰۳۲۱۸۰۱۶۷۷۴

خپروونکی: .................... محمد ساجد

ګرځنده ټیلفون: .................. ۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴

دچاپ شمیر: .................. ۱۰۰۰ زره ټوکه

چاپ: ........ مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوټه

# خبرتیا

دعلم او عرفان درنومینوالو ته خبر ورکول کیږي چې دمکتبې رشیدیې لخوا د پیاوړي عالم حضرت مولانا مفتي محمد رفعت قاسمي صاحب لاندې رسالې له اردو متن څخه پښتو ته ژباړل شوې:

دامامت مسئلې، داعتکاف مسئلې، دجوماتونو مسئلې، دلمانځه مسئلې، داوداسه مسئلې، دجمعې دلمانځه مسئلې، دروژې مسئلې، دسفر مسئلې، دغسل مسئلې، دزکوٰة مسئلې، دتراویحو مسئلې، دموزو مسئلې، دبرات او دقدر دشپې مسئلې، دشرک او بدعت مسئلې، داداب او ملاقات مسئلې، دمأثوره خطبو مجموعه، دعیدینو او قربانۍ مسئلې، دحج او عمرې مسئلې. درانه مینوال کولی شي چې دغه رسالې په خپله له مکتبې رشیدیې او نورو اړونده کتابخانو څخه په مناسب قیمت ترلاسه کړي په درنښت.

## فهرست

| عنوان | مخ |
|---|---|



### لومړی باب

فهرست

عنوان | مخ



فهرست

عنوان | مخ



دوهم باب

## دريم باب

## سماع





## څلورم باب

## ترويحه



## پنځم باب

## شپږم باب



### دبسم الله په بیان کې



## اووم باب

### سجده سهوه

عنوان فهرست مخ



عنوان فهرست مخ



## اتم باب

## د تلاوت سجده

## نهم باب

### د تهجد او شبينې په بيان کې





## لسم باب

### د ختم په ورځ د بيلا بيلو رواجونو په بيان کې

## یوولسم باب

## دلماخستن دلمانځه مسئلې







## دوولسم باب

## دوترو ثبوت او مسئلې

## دیارلسم باب

## سنتونه اونفلونه څه شی دي



## ضمیمه

## فهرست

عنوان | مخ



بسم الله الرحمن الرحيم

### انتساب

زه دخپل دې محنت نسبت سيدنا عمر فاروق ﷛ ته په کولو نيکمرغي حاصلوم چاچې له قاعدې سره سم دتراويحو دجماعت اهتمام او انتظام وفرمايي دهمده په اړه دسيدنا علي ﷛ ارشاد دی الله تعالی دې دده قبر همداسې له نوره ډک کړي لکه څرنګه چې ده زمونږ مسجدونه منور کړل .

### دنوي چاپ په اړه

نحمده ونصلی علی رسوله الکريم زما په وهم او ګمان کې داخبره نه وه تيره شوې چې زما په خيردبې سامانه اولاشي کتابونه (مکمل اومدلل دروژې مسئلې ،مکمل اومدلل دتراويحو مسئلې ،مکمل اومدلل داعتکاف مسئلې ،مکمل اومدلل دامامت مسئلې اودآداب اوملاقات مسائل) به دومره مقبوليت حاصلوي دالله ﷻ په فضل سره ترتوقع يې زياته کاميابي وموندله اوپه هنداوله هند څخه بهردبنده حوصله افزايي اوقبوليت وشو زه دزړه له تله ددغوټولو خواخوږيو شکرکونکی يم له يولوري چې زه خپل کم علمي اوبل لوري دکتابونو مقبوليت ته ګورم نوبې اختياره زما سردخدای ﷻ په دربارکې پرسجده اوزړه مې دالله ﷻ له ثناډک شي چې په خپل ځانګړي فضل اوکرم يې يوه عاجزاوناتوانه ته ددين خدمت ورپه برخه کړ داده په دومره لږه موده کې بشپړې اومدللې دتراويحو مسئلې دريم چاپ له غلطيو اصلاح شوی وړاندې کيږي له دې څخه معلوميږي چې په خواصو اوعوامو کې دالړې مقبوله ده

اودوی له دې څخه ګټه پورته کوي یقیناً دا ټوله دلوی خدای ﷻ
ترفضل وروسته دا ستاذانو کرامو ددعاګانو او ددار العلوم دیوبند
دفیض پایله ده الله تعالی دې زما خاکسار داکوچنی خدمت قبول
دا خرت توښه اوددواړو جهانو دکامیابی وسیله وګرځوي او په
راتلونکي کې دې هم دخدمت توفیق راپه برخه کړي آمین

محمد رفعت قاسمی ۱۵ رجب ۱۴۱۰ ه ج

## ارشاد گرامی

دحضرت مولانا مفتی محمود الحسن صاحب دامت برکاتهم
ددار العلوم دیوبند مفتی اعظم

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد: ترنظر لاندې کتاب
دتراویحو مسائل او دتراویحو امامت چې ترتیب کونکی یې
مولانا محمد رفعت قاسمی مدرس دار العلوم دیوبند دی دچاچې
یو کلنی درسی تړون ددې بنده سره هم شته پرخپله موضوع
ډیر ګټور او جامع کتاب دی نوموړي ډیرې باوري فتاوي
اونوراړونده کتابونه په ډیره خوله بهولو سره مطالعه کړي زیات او کم
څلورسوه دتراویحو او تراویحو دامامت مسئلې یې یو ځای دباب
اوعنوان په ترتیب سره راغونډې کړې له مبالغې پرته زما په نظر
تراوسه کوم داسې کتاب نه دی راغلی چې په کې دې دتراویحو
اودتراویحو دامامت دومره ګڼ شمیر مسائل بیان شوي وي څکه زه
نوموړي ته دده پردغه بې ساري کوښښ دزړه له تله مبارکي ورکوم
ددغو مسئلو په هر رمضان المبارک کې اړتیا پیښیږي او چونکه په ټول



کال کې صرف یوه میاشت دتراویحو کولو او ورکولو لړی وي څکه
نوعوام خو عوام دي کله ناکله ډیر خواص او علماء هم غلط شي
او دهغوی لپاره داړوندو مسئلو لټه ستونزمنه شي الله تعالی دې
مؤلف ته دخیر بدله ورکړي چې هغه دتراویحو او دتراویحو دامامت
مسئلې په دومره ګڼ شمیر یو ځای راغونډې کړې چې اوس به
شاهدداسې اهمه مسئله نه وي کومه چې به په دې کتاب کې نه وي
بیان شوې دا کتاب دعوامو او خواصو دواړو لپاره ګټور او مفید دی
دعاده چې الله تعالی دا زیات نه زیات ګټور او مقبول وګرزوي
او مؤلف ته په راتلونکي کې هم ددارنګه خدماتو موقع ورپه برخه
کړي آمین یارب العلمین

العبد محمود غفرله ۲۲ / ۸ / ۱۴۰۲ ه ق

## ستره رایه

دحضرت مولانا مفتی نظام دین صاحب مدظله العالی ددار العلوم
دیوبند صدر مفتی

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لولیه والصلاة علی اهلها محمدن المصطفی وعلی اله
واصحابه وازواجه واللاحقین بهم الی یوم القرار وبعد: ترنظر لاندې
رساله (دتراویحو مسائل او دتراویحو امامت) دمولانا محمد رفعت
قاسمی تألیف دمؤلف دبې ساري هڅې او محنت نتیجه ده چاچې
دتراویحو او دتراویحو دامامت په اړه نژدې څلورسوه مفتی به جزئي
مسئلې دمعتبرو کتابونو له حوالو سره یو ځای راجمع کړې چې
هرچا ته هر کال په رمضان کې ورته اړتیا پیښیږي او په کال کې صرف

دیو غټ ضرورت پېښیدوله کبله په عامه توګه په ذهن کې د نه
حاضروالی په وجه خلک له غلطیو سره مخ کیږي .
ددې رسالې لویه ځانګړتیا داده چې نوموړي مؤلف دهرې مسئلې
ترعنوان قائمولو وروسته دهرمخ فهرست هم ترتیب کړی چې په کې
دمسئلې په لټه ډیره هوسایي وي ددغو ځانګړتیاوو له امله دغه
رساله دعوامو او خواصو ټولو لپاره ډیره ګټوره او نافع شوې ده
دامسئلې یو ځای عموماً دا رنګه نه ترلاسه کیږي ځکه ددې افادیت
نورهم زیات شوی دعاده چې الله تعالی دنوموړي مؤلف دغه هڅه
مقبوله هڅه وګرزوي او په آئنده کې هم ددا رنګه خدماتو موقع
ورعطا کړي          آمین ثم آمین          فقط بنده نظام الدین
مفتی دارالعلوم دیوبند
۱۴۰۲/۱۱/۴ ه ج

## تقریظ

دحضرت مولانا مفتی ظفیرالدین صاحب زید مجدهم ددارالعلوم
دیوبند مفتی

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی
الحمدلله دمسلمانانو له دین سره مینه او شوق زیاتیږي او له همدې
سره داحکامو طلب او پلټنه هم روانه ده دا یوه ښه نښه ده الله تعالی
دې په دغو نیکو جذباتو کې زیاتوالی وکړي په هره دوره کې دزمانې
دتقاضی سره سم داسلامي احکامو ټولګې په ترتیب سره خپرې شوې
او مسلمانانو له هغوی څخه استفاده کړې داخبره زمونږ ټولو لپاره



دخوشحالی باعث ده چې ددارالعلوم دیوبند یوه استاذ قاری
محمد رفعت صاحب دا ړتیا په احساسولو له تراویحو سره تړلې
مسئلې کومې چې دفتاواؤ په کتابونو کې شیندلې دي په یو ځانګړي
ترتیب راغونډې کړې ترڅو عوام او خواص په اسانی سره له هغه څخه
استفاده وکړای شي او دا ړتیا پرمهال دغه ټولګه هرمسلمان له ځان
سره وساتلای شي چونکه دتراویحو مسئلو ته اړتیاد کال صرف په
یوه میاشته کې په عامه توګه هرلمونځ کونکي ته پیښیږي او په عامه
توګه دامسئلې په ذهن کې حاضرې نه وي که کتاب ورسره وي نو په
خپله به یې په پاڼو اوړ قوا ړولو وګوري ځکه نونوموړي فتاوی
دارالعلوم دیوبند مدلل او مکمله ، کفایت المفتی ، مجموعه فتاوی
عبدالحی فرنګي محلی او نورو فتاواوو ټولګې مخته په
ایښودلو دتراویحو دامامت او دتراویحو اړوند مسئلو دراغونډولو
هڅه کړې ده همدا رنګه یې په سلګونو مسئلې دګڼ شمیر کتابونو په
حواله یو ځای کړې دي هیڅ شک نشته چې داکار زیات
زیار غوښتونکی ؤ او ډیره ځان خوړونه یې غوښته دمرتب
زیار او کوښښ دستاینې وړدی چې هغه همت و نه بایله او خپلو هڅو ته
یې دوام ورکړ او اخرپای دبریالیتوب غاړې ته ورسید ریښتیا داده چې
نوموړی زمونږ ټولو له لوري دمننې حقدار دی ځکه هغه له دغه فرض
دعلماؤ اوږې سپکې کړې او یوه ارزښتمنه ټولګه یې مسلمانانو ته
وړاندې کړه له دې څخه یوازې عوام نه بلکه انشاالله علماء او مفتیان
هم دا ړتیا پرمهال استفاده کولای شي دعاده چې الله تعالی

د مولانا محترم زيار او کوښښ قبول او د آخرت لپاره يې ورته توښه وګرزوي آمين

دعاغوښتونکی محمد ظفير الدين د دار العلوم ديوبند مفتي

## د ترتيب کونکي وينا

نحمده ونصلی علی رسوله الکريم امابعد: په وړاندې شوي کتاب کې د تراويحو، ماخستن او وترو مسئلو ته په يو ځانګړي ترتيب سره د وړاندې کولو کوښښ شوی په کتاب کې له عربي عباراتو څخه د ځان ساتلو په خاطر يوازې مفتی بهٔ قول راخيستل شوی ترڅو عام لوستونکي د مسئلو په فهمولو کې د کومې ستونزې سره مخ نشي د بنده دا کتاب د دار العلوم ديوبند د ښاغليو مفتيانو د فيض نتيجه ده په دې مهال وعامو مسلمانانو ته په وړاندې کولو سره مې زړه د الله ﷻ له حمد او ثنا ډک دی چې صرف پخپل توفيق او مهرباني سره يې دغه خدمت زما غوندې بې سامانه او ناتوانه بنده څخه واخيست.

دعا ده چې بخښونکی خدای ﷻ په خپل فضل او کرم د دې حقير بنده خدمت قبول کړي او په خپلو شکر کونکو بندګانو کې د دې حقير نوم هم وليکي آمين يارب العلمين

محمد رفعت قاسمی

مدرس دار العلوم ديوبند ١٤٠٥ ه ج

بسم الله الرحمن الرحيم

## لومړی باب

### روژې او تراويح د مغفرت باعث دي

عن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ اِيمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ اِيمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ «بخاری و مسلم»

ژباړه: له حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چې د رمضان روژې په ايمان او احتساب سره (د ثواب په نيت) ونيسي د هغه ټول مخکني ګناهونه ورمعافيږي همدارنګه کوم څوک چې په ايمان او احتساب سره د رمضان په شپو کې نفل د تراويحو وکړي د هغه هم ټول مخکني ګناهونه معافيږي همدارازڅوک چې د قدر په شپه په ايمان او احتساب سره نفلونه وکړي د هغه هم ټول ګناهونه وربخښل کيږي.

تشريح: په دغه حديث کې په رمضان کې روژو ته، د رمضان په شپو کې نفلونو ته او په ځانګړي توګه د قدر د شپې نفلونو ته د مخکنيو ګناهونو د مغفرت او معافي وسيله ويل شوي په دې شرط چې روژې او نفلونه په ايمان او احتساب سره وي دغه ايمان او احتساب خاص ديني اصطلاح ده د دې مطلب همدا وي چې کوم نيک عمل وکړل شي د هغه محرک خاص د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ منل او د هغوی پر وعدو او وعيدو باندې يقين راوستل وي او د هغوی

دنبودلي اجراوثواب طمع او هيله وي كومه بله جذبه اوموخه ددې محرک نه وي همدغه ايمان او احتساب زمونږ داعمالو زړه او روح دی که دانه وي نو بيا ظاهري غټ نه غټ اعمال هم بې روح او دننه تش دي کوم چې خدای ﷻ مکړه دقيامت په ورځ دنا چلنده روپيو په څير ثابتيږي او په ايمان او احتساب سره دبنده يو عمل دخدای ﷻ په دربار کې دومره قدرمن او ارزښتمن دی چې دهغه په وجه او برکت دکلونو کلونو ګناهونه معافيدلای شي الله تعالی دې دايمان او احتساب صفت په خپل فضل زمونږ په برخه کړي آمين -

## دروژې او قران شفاعت

عن عبدالله بن عمرو ان رسول الله قال ا لصِيَامُ وَ الْقُرْاٰنُ يَشْفَعَانِ لِلعَبْدِ يَقُولُ الصِيَامُ اىْ رَبِّ اِنِّى مَنَعْتُهُ الطعَامَ وَالشَهْوَاتِ بِالنَّهَارِ فَشَفِّعْنِى فِيْهِ وَيَقُوْلُ الْقُرْاٰنُ مَنَعْتُهُ النَوْمَ بِالَيْلِ فَشَفِعْنِى فِيْهِ فَيَشْفَعَانِ «رواه البيهقي فى شعب الايمان» ترجمه: له حضرت عبدالله بن عمرو ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: روژه او قران دواړه دبنده شفاعت کوي (دهغه بنده کوم چې دروځې روژه نيسي او په شپه کې دالله ﷻ په حضور کې په ولاړه دهغه پاک کلام ووايي يا يې واوري) روژه به عرض وکړي ای زما پروردګاره ما دغه بنده له خوراک څښاک اودنفس له خواهشاتو بند کړی وو نن زما شفاعت دده په هکله قبول کړه (له ده سره دمغفرت او رحمت معامله وکړه) قران به ووايي مادی په شپه کې له خوب او آرام څخه بند کړی وو خدايه ! ﷻ نن دده په هکله زما سپارښت قبول کړه (له ده سره دبخښنې او مهربانی معامله وکړه) څکه نو دروژې او قران دواړو شفاعت به ددغه بنده په اړه قبول شي



(دده لپاره به دجنت او مغفرت پريکړه وشي)) تشريح: دچا په قربانولو نه، دخپل ځان او مال په ورکولو نه، دصحت او روغتيا په ختمولو نه بلکه که لږ آرام پريږدو او په نفس لږ زور وکړو درسول الله ﷺ راښودلی علاج او درملنه وکړو نو مونږ دا نعمت ترلاسه کولای شو څومره بختوردي هغه بندګان چې دهغوئ په هکله ددوئ دروژو او په نفلونو کښې ددوی لوستي يا اوريدلي قران کريم شفاعت قبول شي دا به ددوی لپاره څومره دخوشحالي او مسرت وخت وي (معارف الحديث ج ۴ ص ۱۰۸ )

## دتراويحو اهتمام او درکعتونو شمير

دحضرت عمرفاروق ﷛ عام اعلان وه چې زما اطاعت ترهغوده ترڅوزه دالله ﷻ او دهغه درسول ﷺ او دصديق ﷛ په سيرت عمل کوم چيرې چې دخالق معصيت وي هلته دکوم مخلوق اطاعت جائزنه دی دايوروا جي اعلان نه وو بلکه حضرت عمر ﷛ دخلکو دازمويلو لپاره پرمنبر سربيره داسې اعلان وکړ خلکو ! که چيرې زه دنبوي سنت اوصديقي سيرت په خلاف کوم حکم وکړم نو تاسو به څه کوئ ؟ خلک چوپه خوله ؤ بيا يې دوهم ځل دغه اعلان وکړ نو يوه ځوان توره راواخيسته ولاړ شو اوتورې ته يې اشاره وکړه او ورته ويې ويل: دا به فيصله کوي حضرت عمر ﷛ خوشحاله شو ويې فرمايل: ترڅو چې په خلکو کې داسې جرأت پاتې وي ترهغو امت نشي ګمراه کيدای.

يو ځل ده مبارک تقرير کاوه ډير خلک ورته ناست وو ده وويل: اسمعوا واطيعوا » يعنی واورئ او عمل پرې وکړی يو عام سړی ولاړ شو او ويې ويل: ستا خبره نه اورو او نه عمل پرې کوو څکه چې

تادغنيمت دمال په ويشلو کې مساوات اوبرابري نه ده کړې ځکه چې
دغه ټوکرکوم چې ستاسې په چوپانه (خرقه) کښې دی مونږته هم
راکول شوی خوله هغه څخه څادراولنګ نشي جوړيدای
اوستاسوجوغه ژرنګه ورڅخه جوړه شوه ؟ حضرت عمرفاروق ؓ
دځواب ورکولوپرځای خپل زوی عبدالله راوغوښتی هغه وويل:
داټوکرماته هم راکول شوی ووخودپلارمحترم سره صرف يوه کرتې
وه د جمعې دورځې لپاره دهغې په مينځلواوو چولوبه وځنډيدی نو
ماخپله برخه هم ده ته ورکړه ځکه نوددواړوپه يوځای کولويوه جوبه
(چوپانه ) ورڅخه تياره شوه.

دې ته ورته نورې ډيرې داسې واقعې موندل کيږي چې
دغوحضراتو دسنت خلاف يوه کوچنۍ خبره هم نشواي زغملای ټول
دنبي کريم ﷺ دسنتو عاشقان وو له بدعت اودسنت له خلاف کارڅخه
دومره بيزاروو چې دامت هيڅ يوشخص دهغه بيلګه نشي وړاندې
کولای داسې کلک دسنت پابند اودشريعت پيروحضراتو لکه
حضرت عثمان غنی ، حضرت علی ، حضرت ابن مسعوذ ، حضرت
ابن عباس رضی الله تعالی عنهم اوله دوی پرته ټول مهاجرين
اوانصار رضی الله تعالی عنهم په موجوديت کې حضرت
عمرفاروق ؓ حضرت ابی بن کعب ؓ دشلورکعتونو تراويحوورکو
لولپاره وټاکی هيچاهم په ده اعتراض يانيوکه ونه کړه بلکه ټولويې
مرسته موافقه اوتائيد وکړ اوهغه يې جاري اورواج کړ (ټولواصحابو
رضی الله تعالی عنهم په پابندي سره په تراويحوکې برخه واخيسته )
تردې چې حضرت علی ؓ دعمر ؓ ستاينه وکړه اودده لپاره يې



دخيردعاوکړه ده به دحضرت عمر ؓ تروفات وروسته ويل: چې الله
تعالی دې دحضرت عمر ؓ قبرله نوره ډک کړي لکه ژرنګه چې هغه
زمونږ مسجدونه منورکړل کوم ښاغلي چې دحضرت عمر ؓ شل
رکعته تراويحوته بدعت وايي که هغه صحيح ومنل شي
نوبيادحضرت عمر ؓ په زمانه کې داصحابه ددومره کثرت سره
ژرنګه په شل رکعته موافقه راغله ؟ که چيرې حضرت عمر ؓ له ځانه
شل رکعته ايجاد کړي وي نوهغه جم غفير اوګڼ شمير صحابه رضی
الله تعالی عنهم چيرې وو په کوموکې چې د يوادنی صحابی ؓ
داجرات ووچې په يوه کوچنی خبره يې په حضرت عمر ؓ دخطبې
پرمهال نيوکه وکړه دحضرت سعد بن ابی وقاص ؓ پروفات بي بي
عائشې رضی الله عنها غوښتل چې دجنازې لمونځ په مسجد کې وشي ترڅودا
هم پکې برخه واخلي خودام المومنين دغه فرمايش ياحکم ځکه قبول
نکړل شو چې په مسجدکې دجنازې لمونځ دسنت په خلاف وو سره له
دې چې حضرت سعد بن ابی وقاص نه تنهادا چې دايران فاتح وه بلکه
له عشره مبشره ووڅخه هم وو.

دابن عمر ؓ مخته يوه سړي پرچ وهل (ويې نوړل ) هغه وويل:
الحمدلله والصلاة علی رسول الله په دې جمله کې دوالصلاة علی
رسول الله زياتوالی که څه هم دمفهوم په اعتبار ډيرښه وو چې
پررسول الله سلام درودوو خودسنت دخلاف والي له امله سمدستي
ابن عمر ؓ هغه کس پوه کړ چې دادسنت په خلاف دی حضرت امير
معاويه ؓ دکعبې شريفې ټول کونجان مچ کړل حضرت ابن عباس ؓ
سمدستي خبرداری ورکړچې له حجراسودپرته دهيڅ ځای مچول

ځنګه وکړ حضرت معاویه خلاف عمل دسنت تادا دي نه سنت نبوي
رضی الله دغه حضراتو صحابه کرامو ته ورکړه رجوع وکړه فعل دغه ﷺ له
تعالی عنهم یوه ذره دسنت په خلاف عمل نشو زغملای که به له
عوامو څخه وواو که به له پاچاهانو څخه سمدستي به یې راګرزول
نو آیا له دغه ښاغلیو څخه داشوني ده چې دوی په مسجد نبوي
او مسجد حرام کې شل رکعته تراویح وزغمي کومې چې انفرادي نه
بلکه په تولنیزډول کیدې؟ ددغه حضراتو په اړه دا فکر کول چې دوی
دمجبوریت له امله په کې برخه اخیسته او ددوی له خولو څخه دویرې
له وجه هیڅ یوه کلمه نه روا تله معاذالله دا ډول فکر کول نه صرف
پر حضرت عمر ﷺ بدګمانی ده بلکه له ده پرته د ټولو صحابه
کرامو، طابعینو او مجتهدینو ائمو پر خلاف دبد ګماني دروازه
پرانستل دي کوم چې په دغه مسئله کې د مسلمانانو له خلیفه سره
متفق او له هغه سره په دغه (تراویحو کې) شریک وو مونږ په
حضرت عمر ﷺ او نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم هیڅ کله داسې
ګمان نشو کولای چې دوی ټول دې د رسول اکرم ﷺ د سنت خلاف په
کوم داسې عمل اتفاق کړی وي خبره داده چې د حضرت عمر ﷺ
تر زماني مخکې هم شل رکعتیزې تراویح له بیلا بیلو امامانو سره
تنها کیدلې صرف حضرت عمر ﷺ د جماعت ځانګړی اهتمام وکړ نو له
دې څخه دا څنګه لازمه شوه چې حضرت عمر ﷺ د تراویحو بدعت
جاري کړ.



## دخبرې لنډیز

له احادیثو څخه معلومیږي چې رسول الله ﷺ تراویح په جماعت سره
کړې دي تر څو ددې سنت والی معلوم شي تردې وروسته یې له دې
وجهې پرینښې داسې نه چې فرض وګرځي که د فرض کیدو اندیښنه نه
وای نو رسول الله ﷺ به همیشه تراویح ورکولای رسول الله ﷺ
اصحابو کرامو ته په کورونو کې د تراویحو کولو حکم کړی وو چونکه
د رسول اکرم ﷺ تر وفات وروسته د فرض کیدو اندیښنه ختمه شوه
ځکه لازمه شوه چې تراویح په مسجدونو کې په جمعې سره وشي
تر رسول الله ﷺ وروسته ابوبکر ﷺ په جماعت سره د تراویحو کولو
حکم ونه کړ ددې لامل داوه چې دی ﷺ تردې هم په اهم کار مصروف
او بوخت وو یعني دی دنبوت د دعوه کونکیو او مرتدینو په مقابله
اخته وواو د خلافت موده یې هم ډیره لنډه یعني دوه کاله او
څو میاشتې وه چې له دې کبله نو موړي په جماعت سره د تراویحو د
اهتمام فرصت ونه موند حضرت عمر ﷺ د خپل خلافت د پیل په زمانه
کې زیات مشغول وو تردې وروسته چې کله انتظامات صحیح
او مستحکم شول او د ځمکې پرمخ دامن فرش خور شو نو ددې سنت
دقائمولو طرفته یې توجه وکړه لکه چې بخاري له عبدالرحمن بن
عبدالقادر څخه روایت کړی هغه وایي: زه یوه شپه له حضرت عمر ﷺ
سره مسجد ته ورغلم ومې لیدل چې خلک دلته هلته په متفرق
(جلا جلا) ډول لمونځ کوي څوک یوازې دي او له چا سره څو نفره دي
حضرت عمر ﷺ وفرمایل: که دا ټول د یو حافظ شاته راجمع کړم
نو ډیر ښه به وي بیا یې همدغه خیال پوخ کړ ټول یې د ابی بن کعب ﷺ

مقتديان کړل ترديې وروسته دوهمه شپه له حضرت عمرؓ سره ولاړم نو ومې ليدل چې خلک دجماعت په صورت په خپل امام پسې لمونځ کوي دهغوئ په ليدو حضرت عمرؓ وفرمايل: دا ډيرښه بدعت دی.

علامه قاري رحمه الله وايي حضرت عمرؓ چې تراويحو ته کوم بدعت وويل صرف دصورت په اعتبارېې وفرمايل ځکه چې داغونډه درسول اکرم ﷺ تروفات وروسته وشوه کنه دحقيقت په اعتبار دغه بدعت نه دی ځکه چې رسول اکرم ﷺ په خپله اصحابو ته په کورونو کې دکولو حکم کړی وو ترڅو فرض نه شي له احاديثو څخه درسول الله ﷺ شل رکعته تراويح کول ثابت دي خو په دومره اهتمام او کثير جماعت سره نه کيدې حضرت عمرؓ دټولو ديوه امام سره دکولو اهتمام وکړ دائمو په اتفاق سره دا صحيح ده چې په تراويحو کې جماعت افضل دی بلکه ځينې علماؤ ددې په اړه دا دعوی کړې ده چې دټولو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم په دې اجماع شوې ده ځکه چې له مهاجرينو او انصارو څخه هيڅ يوه هم پردې رديانيو که ونکړه ټولو په دې کې برخه واخيسته درسول اکرم ﷺ له ارشاد عليکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين الخ څخه دداړو سنتونو عملي کول په وضاحت سره معلوميږي ده مبارک داحکم نه دی کړی چې زما سنت عملي کړی او دخلفاؤ سنت پريږدئ بلکه ددواړو التزام وکړئ.



## له امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله څخه پوښتنه

له امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله څخه دسيدنا عمرؓ ددغه عمل (تراويحو) په هکله پوښتنه وشوه نو ده وفرمايل: چې تراويح مؤکد سنت دي دحضرت عمرؓ نوی فعل نه دی هغه کوم بدعت ونه کړ ترڅو چې ددې حکم اصل هغه ته نه وو معلوم شوی ددې کار کولو حکم يې ونه کړ کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ ص ۴۴۳ که څوک نور زيات تفصيل ليدل غواړي نو لاندې کتابونه دې وګوري ۱ انوار المصابيح مؤلف مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله ۲ رکعات تراويح مؤلف مولانا حبيب الرحمن اعظمی دامت برکاتهم ۳ فتاوای رحيميه لومړی ټوک ۴ فتاوی رشيديه کامل ۵ کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة.

## تراويح دټولو لپاره سنت دي

تراويح دنرو او ښځو لپاره سنت دي په جماعت سره تراويح کول کفايي سنت دي او دتراويحو وخت دماخستن تر لمانځه وروسته دی او په تراويحو دوتر وراندې کول هم صحيح دي او وروسته کول هم صحيح دي دشپې تر دريمې برخې دتراويحو ځنډول مستحب دي او دصحيح مذهب سره سم ترنيمې شپې پورې هم دتراويحو ځنډول مکروه نه دي تراويح شل رکعته دي په لسو سلامونو سره او ترهرو څلورو رکعتونو وروسته ددغو څلورو رکعتونو په اندازه ناسته ده او دروژې په مياشت کې په تراويحو کې يو ځل ختم کول سنت دي نور الايضاح ص ۹۹ » تراويح دنارينه او ښځينه ټولو لپاره

مؤکد سنت دي خو د میرمنو لپاره جماعت مؤکد سنت نه دی «کفایت المفتی ج ۳ ص ۳۶۱»

## په تراویحو کې د حافظ قران کریم اورول

سوال: په تراویحو کې د حافظ لپاره د قران کریم اورول واجب دي که مستحب؟ د واجب کیدو په صورت که کوم شخص د ویلو پر مهال له ریا څخه د ځان ژغورنې توان ونه لري نو د هغه لپاره اورول جائز دي او کنه؟ د نه جواز په صورت کې په نه اورولو سره د قران کریم کوم حق یا مواخذه ده په غاړه پاتیږي او کنه که پاتیږي نو بیا به د خلاصون صورت څه وي؟ جواب: په تراویحو کې د قران شریف اورول او اوریدل سنت او مستحب دي او د ریا او عجب له وجهې دی نه پریښودل کیږي او تر خپله وسه دې د اخلاص حاصولو کوښښ وشي او د الله ﷻ د رضا لپاره دې بې له معاوضې واورول شي دا ډیر لوی د اجر او ثواب کار دی او په همدې کې فضیلت دی نور نو که د کوم عذر په وجه کوم حافظ صاحب قران شریف وانه وروي نو له مسئولیت څخه خلاص دی قال الله تعالی لایکلف الله نفسا الا وسعها «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۴۸»

## آیا تراویح ورکول د امام ذمه واري ده؟

سوال: امام صاحب پنځه وخته لمونځ په پابندي سره ورکوي خو په تراویحو کې د اورولو عادت نه دی پاتې شوی ځینې خلک وایي چې تراویح ورکول د امام ذمه واري ده؟ جواب: که په تراویحو کې امام صاحب د قران کریم اورولو څخه عاجز او قاصر وي نو په الم ترکیف سره د تراویح ورکولو ذمه وار دی که مقتدیان په تراویحو کې د قران



کریم د اوریدلو نکمرغي ترلاسه کول غواړي نو ددې انتظام دې مقتدیان پخپله وکړي امام صاحب د نه مجبوروي که د خدای ﷻ لپاره تراویح ورکونکی ونه موندل شي نو کوم حافظ د رمضان د میاشتې لپاره نائب امام وټاکئ د ماخستن او نور یو دوه لمنځونه دده په ذمه لازمول په کار دي او تراویح دی هم دی ورکوي په دې سره د اجرت اخیستلو لاره راوتلای شي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۴۹»

## په تراویحو کې د امامت حق

سوال: بکر په یوه مسجد کې امام مقرر شو او د قران حافظ هم دی زید هم د قران حافظ دی هغه له ډیره وخته په دې مسجد کې تراویح ورکولې اوس بکر وایي چې زه امام ټاکل شوی یم د تراویحو ورکولو حق زما دی زید وایي چې زما پخوانی حق دی نو د تراویح د چا حق جوړیږي؟ جواب: په پوښتل شوي صورت کې کله چې بکر امام ټاکل شوی دی نو د تراویحو د امامت حق هم ده ته حاصل دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۲ د درمختار ج ۱ ص ۵۲۲ باب الامامة په حواله»

## د تراویحو لپاره حافظ مقررول

سوال: لکه څنګه چې د پنځه وخته لمونځونو لپاره امام ټاکل جائز دي آیا همدا رنګه د تراویحو لپاره هم حافظ مقررولای شو؟ جواب: څرنګه چې مسئله داده چې الامور بمقاصدها او دا هم ده چې المعروف کالمشروط نو که کوم حافظ د قران کریم ختمولو لپاره د تراویحو امام جوړ کړل شي نو څرګنده ده چې له دې څخه مقصد امامت نه دی بلکه د قران کریم ختم دی نو په دې چې کوم اجرت اخیستل کیږي یا ورکول

كيږي هغه دقران كريم دختم په وجه دى (نه محض دامامت په وجه)
نودلايجوزاخذالاجرة على قراءة القران دقاعدې سره سم په تراويحو
كې دقران پرختم اجرت اخيستل اوور كول نه روا كيږي همدارنګه
دشامي پنځم ټوک ۳۵ مخ كې راغلي چې بې له اجرته دتراويحو امام
مقررول صحيح او افضل دى خو په اجرت جائزنه دي «فتاوى
دارالعلوم ج ۴ ص ۲۴۷ ردالمحتار ج ۵ ص ۴۷ كتاب الاجاره مطلب
الاجارة فى الطاعة په حواله»

## يوسړى دوه ځايه تراويح وركولاى شي كنه

سوال: ځينې حافظان داسې كوي چې په يوه مسجد كې تراويح
وركړي راشي په بل مسجد كې هم تراويح وركوي ددې شرعي څه
حكم دى؟ جواب: كه چيرې دواړه ځايه پوره پوره تراويح وركړي
نو دمفتى به قول سره سم ددوهم مسجد دخلكو تراويح نه صحيح
كيږي په عالمگيري كې ځرګندونه وجودلري «فتاوى دارالعلوم ج ۴
ص ۲۸۸ دعالمگيري ج ۱ ص ۲۸۹ په حواله»

يادونه: ددې صورت داروتلاى شي چې حافظ صاحب لس ركعته
تراويح په يوه مسجد كې وركړي او پاتې تراويح له مقتديانو څخه
كوم يو دحافظ صاحب پرځاى په سورتونو پوره كړي
«مرتب محمد رفعت قاسمي»

## حافظ ته په تراويحو كې دمعاوضې وركولو شرعي حيثيت

سوال: په روژه مباركه كې دقران كريم دختم په غرض دحافظ دخه
اخيستلو يا وركولو په نيت اوريدل اورول او وروسته وركول اخيستل
څنګه دي نيت ددواړو دوركولو اخيستلو وي بيله دې يې نه اوري اونه



يې اوروي كه په كوم مسجد كې قران شريف نه واورول شي صرف
پرتراويحو كولو كفايت وكړل شي نو هغه خلک به په روژه كې دقيام
كولو له فضيلت څخه بې برخې شي او كنه؟ جواب: په اجرت دقران
كريم ويل صحيح نه دي او په دې كې ثواب هم نشته او دالمعروف
كالمشروط په حكم دچانيت چې دوركولو اخيستلو دى هغه هم
داجرت په حكم دي او ناجائزدي په داسې حالت كې يوازې تراويح
كول او دا اجير حافظ څخه قران نه اوريدل غوره دي او يوازې په
تراويح اداكولو دروژې دقيام فضيلت حاصليږي «فتاوى دارالعلوم
ج ۴ ص ۲۴۶ دردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۰ مبحث التراويح په حواله»

## دتراويحو اجرت دتحفې په ډول

سوال: يو مولوي صاحب ډيرديندار، پرهيزګار او حافظ دقران دى هغه
هر كال په روژه كې ديوه كلي په مسجد كې تراويح وركوي ترختم
وروسته مقتديان او نور يو څه اندازه بې له څه جبراوزوره او بيله دې
چې مخكې دپه دې اړه خبره شوېي وي دخداى ﷻ لپاره حافظ ته څه
وركوي او حافظ يې هم په خوشحالۍ قبلوي او وايي: چې
زمامقصدله دې څخه مال او ددنيا كسب نه دى زمامقصد خو ثواب
او دسنت مؤكده ادا ينه او دقران يادساتل دي دپيسو شتون او نه شتون
زما په اند برابردي او دتفسير عزيزي له يو عبارت څخه
پرعباداتو داجرت اخيستلو جواز معلوميږي په دې صورت كې شرعاً
څه حكم دى؟ جواب: فقهاؤ داقاعده ليكلې چې المعروف
كالمشروط كذافى الشامي وغيره) نو كه دې حافظ صاحب ته
معلومه وي چې دده دقران په اورولو له مسجد څخه روپۍ وركول

کیږي او داورکول او اخیستل عرف او رواج ګرځیدلي وي نو دي
حافظ ته دقران کریم په ختمولو څه اخیستل صحیح نه دي که نه
لوستونکی او اوریدونکي له ثواب څخه بې برخې کیږي او دشاه
عبدالعزیز رحمه الله دلیکنې مطلب دادی چې پردغه عبادت دڅه
ورکولو او اخیستلو رواج نه وي ترڅو دفقهاؤ دکلام او دشاه صاحب
دارشاد ترمنځ تعارض دفع شي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۴
دردالمحتار ج۱ ص ۲۸۷ په حواله»

## حافظ ته دتلوراتلو کرایه او ډوډۍ ورکول

سوال: یو حافظ صاحب دشعبان (برات) په پای کې راوغوښتل شو
او ټولو خلکو چنده وکړه دتلوراتلو کرایه یې ورکړه او دروژې په ټوله
میاشت کې یې ښه خوراک څښاک ورکړ نو دغه صورت بیله عوضه
دقران شریف داورولو شمیرل کیږي او که نه او که دا صورت هم
ناروادی؟ او ده ته څه زیاتوب ددې په عوض نه ورکول کیږي که
داسې صورت ونه کړل شي نو حافظ صاحب قران نه اوروي ؟ جواب:
دتلوراتلو په کرایه ورکولو د حافظ له بهر څخه راغوښتل او بیله
عوضه دغه قران شریف اورول جایز او دثواب باعث دي او کله چې
هغه له بهر څخه راوغوښتل شو نو دی ملمه بلل کیږي ښه ډوډۍ
ورکول ورته جائز دي فقط «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۵» که
دحافظ صاحب په زړه کې داخیستلو خیال نه وو او بیا چا ورکړې
نو صحیح دي او که یې دعرف او رواج په اساس ورکوي او حافظ
صاحب یې هم داخیستلو په خیال اوروي که څه هم په خوله یې څه نه
وي ویلي نو صحیح نه دي «فتاوی رشیدیه کامل ص ۳۲۴»



## دتراویحو معاوضه

سوال: حافظان صاحبان دتراویحو لپاره پیسې معلوموي یا متولی ته
وایي چې څه ستاسې خوښې وي هغومره راکړئ یا متولي ورته وایي
چې مونږ په خپله خوښه چې څومره وغواړو دربه یې کړو نو په دا ډول
معلومول جائز دي او کنه ؟ جواب: په تراویحو کې اجرت ورکول
او اخیستل ناروادي ورکونکی او اخیستونکی دواړه ګنهګاریږي
تردې ښه داده چې په الم ترکیف سره تراویح ورکول شي دخدای ﷻ
لپاره ویل او دخدای ﷻ لپاره ورسره مرسته کول جائز دي خو په دې
زمانه کې داچیرې شته ؟ که یو ځل پیسې ورنه کړل شي نو حافظ
صاحب دوهم ځل نه راځي اصل مسئله همدغه ده مګر هغه مشکلات
له نظره غورځول نه دي په کار کوم چې هر کال او نژدې
دهر مسجد لمونځ کونکو ته پیښیږي دعمل وړ حل همدغه دی چې
چیرته دخدای ﷻ لپاره تراویح ورکونکی حافظ ونه موندل شي هلته
دتراویح ورکونکی درمضان دمیاشتې لپاره نائب امام جوړ کړل شي
او دهغه په ذمه دیو یا دوه لمونځونو مسئولیت ورکول شي نو په بیان
شوي حیله سره تنخواه اخیستل روا کیږي ولې چې په امامت اجرت
اخیستل جائز دي دمفتی اعظم حضرت مولانا مفتی کفایت الله فتوی
داده چې که دروژې دمیاشتې لپاره حافظ ته تنخواه ورمقرره شي
او یو دوه لمونځونه دهغه په امامت کې ورګډ کړل شي نو دا صورت
جائز دی ځکه چې په امامت داجرت اخیستلو اجازه فقهاؤ ورکړې.
«محمد کفایت الله کان الله له دهلی ۲۷ شعبان ۱۳۷۰ھ ج کفایت
المفتی ص ۷ ج ۳»

یادونه: حضرت مفتی محمود حسن صاحب دامت برکاتهم فرمايي چې اصل مذهب خو دنه جوازدی خو په بیان شویو حالاتو کې د بیان شوې حيلې گنجائش شته «فتاوی رحیمیه ج ۳ ص ۳۵۰»

همدارنگه یو صورت دا هم راوتلای شي چې له لمونځ کونکیو څخه کوم خیر کونکی د حافظ د روژمات پیشلمي او نورو ضروریاتو انتظام وکړي او اخیر د تحفې یا مرستې په توګه څه ورکړي نو دا د اعتراض وړ نه دي داجرت په توګه ورکول منع دي فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۴۳۳

که بې له تعیینه ورکول شي او پرنه ورکولو کومه شکوه او شکایت نه وي نو دا صورت له اجرت څخه وتلی او د جواز په حد کې داخلیدای شي «کفایت المفتی ج ۳ ص ۳۵۰»

## دنابالغه حافظانو د قران پخولو لپاره د نفلو جماعت او په هغه کښې د ګډون حکم

سوال: یو نابالغ حافظ په نفلو کې قران کریم اورول غواړي نو په دا سې نابالغ حافظ پسې اقتداء د اصلاح په نیت کولای شو او که نه؟ جواب: په نابالغ حافظ پسې اقتداء خو په تراویحو او نفلو کې هم صحیح نه ده خو که هغه د خپل قران پخولو لپاره او د تراویحو ورکولو عادت جوړولو لپاره په نفلي لمونځ کې قران وا وروي نو د فتحې ورکولو لپاره یو حافظ او که په یوه کفایت نه کیدای دوه حافظان اقتداء ورپسې کولای شي البته د فضیلت حاصلولو په خاطر اقتداء نه ورپسې صحیح کیږي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۸۲»



## په کوچني پسې د تراویحو مسئله

سوال: که ترپنځلس کاله کم ماشوم صرف تراویح ورکړي او فرض بل کس ورکړي نو آیا دا صورت جائزدی او که څنګه؟ جواب: د ماشوم تراویح صرف نفل دي او د بالغ تراویح سنت مؤکد دي او بل دا چې په کوچني باندې نفل په شروع سره هم نه واجبیږي او پر بالغ واجبیږي نو د ماشوم لمونځ ضعیف شو پر دې ضعیف لمانځه د قوي لمانځه بنا د اصولو د خلاف کیدو له امله نه جائز کیږي «امداد الفتاوی ج ۱ ص ۳۶۱»

په فتاوی محمودیه کې راغلي چې نابالغ د تراویحو لپاره امام جوړول صحیح نه دی خو که دا نابالغ د نورو نابالغانو امامت وکړي جواز لري «فتاوی محودیه ج ۲ ص ۳۵۰»

## د بې ږیرې بالغ حکم

سوال: په لغړزني هلک پسې لمونځ کیدلای شي او که نه؟ مراد دا چې بالغ شوی وي خو ږیره او بریتونه یې نه دي راغلي که حافظ وي او که طالب د کوچني والي په وجه د مقتدیانو دده د امامت په هکله اختلاف وي په دې اړه شرعي حکم څه دی؟ جواب: که چیرې هغه ښائسته وي او ده ته د خلکو په شهوت سره د کتلو احتمال وي بیا نو که دی طالب او یا حافظ هم وي بیا هم دده امامت مکروه دی او که دا خبره نه وي صرف د عوامو ناخوښه وي نو که دی تر ټولو مقتدیانو په علم او قران کې ښه وي نو دده امامت مکروه نه دی او که د دومره عمر شوی وي چې اوس یې د ږیرې د راتلو هیله نشته نو دی اَمرَدْ نه بلل کیږي «امداد الفتاوی ج ۱ ص ۳۵۸»

## دیوې میاشتې کم پنځلسو کلونو دهلک دامامت مسئله

سوال: دکوم هلک عمرچې د۱۴۰۵ھ ج درمضان په لومړۍ ورځ څورلس کاله اویوولس میاشتې وي دهغه امامت جائزدی اوکه څنګه؟ جواب: مسئله داده چې که په هلک کې کومه بله نښه دبلوغ دمثال په ډول احتلام اوانزال ونه موندل شي نودپنځلسو کلونو پرپوره کیدوشرعاً بالغ بلل کیږي نود چا عمرچې دروژې په لومړۍ ورځ څورلس کاله اویوولس میاشتې شي دهغه امامت په تراویح اووتروکې صحیح نه دی ځکه چې دامام ابوحنیفه رحمه الله صحیح مذهب همدغه دی چې دنابالغ امامت په فرضو، واجبو اونفلوکې صحیح نه دی خوکه دبلوغ کومه علامه په کې وموندل شي نوصحیح کیږي همدارنګه په څورلس کلن هلک پسې فرض اوتراویح هیڅ یوشی نه صحیح کیږي ترڅو پوره دپنځلسو کالونشي خوکه دڅورلس کلونو په عمردبلوغ علائم په کې پیداشوي وي اودی وایي چې زه بالغ شوی یم نوپه ده پسې امامت صحیح دی «فتاوی دارالعلوم دیوبند ج ۴ ص ۲۲۲ دردالمحتارج۱ ص ۵۳۹ باب الامامة په حواله»

## دکوم عمرهلک تراویح ورکولای شي

سوال: دڅومره عمرهلک په تراویحوکې قران کریم اورولای شي دیوه هلک نژدې شپاړس کاله پوره کیږي دی په تراویح کې قران کریم اورولای شي اوکنه؟ ددغه هلک پرمخ ږیره اونورهیڅ شی نشته اوداسې هلک کوم چې دپنځلسوشپاړسو کالووي هغه دمخ په صف کې دخلکوسره دریدلای شي اوکنه؟ جواب: که کومه بله علامه

دبلوغ مثلاً احتلام اونورپه هلک کې موجودنه وي نوشرعاً دپنځلسو کلونو په پوره کیدو دبلوغ حکم ورکول کیږي نودکوم هلک چې شپاړسم کال پیل شوی وي په هغه پسې تراویح اوفرض لمونځونه ټول صحیح دي که څه هم بې ږیرې وي دداسې عمرهلک دمخ په صف کې دریدلای شي اودیارلسم کلن اوڅورلس کلن امام نشي جوړیدلای خوپه تراویحوکې دفتحې ورکولوله امله دی دمخ په صف کې دریدلای شي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۴۷»

## دږیرې خریونکي حافظ امامت

سوال: کوم حافظ چې ږیره خریي په هغه پسې تراویح کول څنګه دي؟ جواب: ږیره خریل حرام دي اوږیره خریونکی دشریعت له مخه فاسق دی ځکه داسې حافظ امام جوړول جائزنه دي په داسې امام پسې تراویح کول تحریمي مکروه دي «فتاوی رحیمیه ج۱ ص ۳۵۳ دشامي ج۱ ص ۵۲۳ په حواله»

## ترځنګلې پورې دلاس پرې شوي امامت

سوال: دیوه حافظ لاس ترځنګلې پورې پرې شوی په داسې حافظ پسې تراویح صحیح کیږي اوکنه؟ جواب: په داسې حافظ پسې تراویح کول جائزدي مکروه نه دي «فتاوی رحیمیه ج۴ ص ۳۸۳»

## دفیشني حافظ امامت

سوال: ځیني حافظان موډیان اوفیشنیان وي جامې اونورشیان یې دشریعت مطابق نه وي دسرویښتان یې انګریزي جوړکړي وي اولوڅ سرګرځي نوآیا په داسې حافظانو پسې تراویح کولای شو اوکنه؟ جواب: که حافظ دخپلو ناوړه عاداتو پرېښودلو عهدوکړي نودی

دتراويحو امام جوړيدلای شي او كنه نو بيا داسې شخص دامامت دمنصب ورنه دی او په دې وجه كه لمونځ كونكي له ده خوابدي او خپه وي نو دهغوی خوابديا به پر ځای وي په حديث شريف كې راځي چې كه په شرعي سبب سره څه لمونځ كونكي له امامه خوابدي وی نو په داسې امام پسې لمونځ نه قبليږي كه حافظ دخپل ژوندډول بدلولو ته چمتووي نودی امام جوړيدلای شي او كه نه دامامت پاک منصب دې ته سپارل په كار نه دي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۴۱۷ ددرمحتار ج ۱ ص ۵۲۲ په خواله»

## دبد چلندي ميرمنې په زوی پسې تراويح

سوال: يو حافظ صاحب ډير خوش اوازه دلمانځه اوروژې پابند او ښو اخلاقو څښتن دی قران كريم يې ښه ياد دی خو ولد الزنا (هرمونی ) دی يعنی ديوې بد چلندې ميرمنې زوی دی آيادی امام جوړيدلای شي په ده پسې فرض لمونځ او تراويح كول جائز دي او كه نه ؟ جواب: كه دا حافظ نيک ،صالح او دمعاشرت په لحاظ خوندي دی نو په ده پسې لمونځ جائز دی ولد الزنا والی په داسې صورت كې دكراهيت باعث نه دی «كفايت المفتي ج ۳ ص ۶۴

## كه دحافظ ږيره تريوه مټ كمه وي

سوال: زمونږ په ښار كې صرف يو حافظ دقران دی خو دهغه ږيره تريوه مټ كمه ده ځكه چې هغه ږيره لنډوي په ده پسې تراويح كول جائز دي او كنه ؟ جواب: كه ترده غوره بل امام موندل كيدای شي نو دا كس بايد امام جوړنه كړل شي ده ته دې د يوه مټ په اندازه دږيرې



پريښودلو وړانديز وشي كه يې ومنله نو امامت يې صحي دی «كفايت المفتي ج ۳ ص ۸۷»

په امداد المفتيين كې دږيرې خريونكي يا پريكونكي په اړه ليكل شوي چې داسې شخص فاسق او كلک ګنهګار دی دده امام جوړول جائز نه دی ځكه چې په ده پسې لمونځ مكروه تحريمي دی او دی داهانت مستحق دی او په امام جوړولو سره دده درناوی دی ځكه نو داسې شخص امام جوړول جائز نه دي «امداد المفتيين ج ۱ ص ۲۲۱ دشامی ج ۱ ص ۲۲۱ باب الامامة په حواله»

په فتاوی دارالعلوم كې دامسئله داسې ليكل شوي په حديث شريف سره دږيرې پريښودل او زياتول او دبريتو كمول ثابت دي او دږيرې خريل يا كمول كه ږيره له يوه مټ څخه زياته نه وه نو حرام دي كوم شخص چې تريوه مټ كمه ږيره خريي يا يې پريكوي هغه فاسق دی او دفاسق امامت تحريمي مكروه دی په كوم چاكې چې ټول اعمال دشريعت موافق وي ليكن يو كار يې دشريعت خلاف وي هم فاسق دی هغه ته په كار دي چې ددې حرام كار څخه توبه وباسي دږيرې خريل او پريكول دې پريږدي خو كه تريوه مټ زياته وي نو دهغه وهل فقهاؤ جائز ليكلي «فتاوی دارالعلوم عزيز الفتاوی ج ۱ ص ۱۱۷»

## داحتياط كونكي ړانده امامت

سوال: آيا دنظر كمزوري دامامت مانع كيدلای شي ؟ جواب: فقهاؤ كرامو دداسې ړانده امامت كوم چې بې احتياطه او له پليتي بچ كيدونكی نه وي مكروه تنزيهي بللی خو دا حكم عام نه دی بلكه په احتياط نه كونكي پورې خاص دی ځكه نو كوم ړوند چې احتياط

ساتنې پوره اهتمام کوي پاک
کونکی وي اوله پلیتی دخان ساتنې پوره اهتمام کوي پاک
اوصفا او سپېڅلي دهغه امامت بیله کراهیته روا دی دعائشې ؓ بیان
دی چې رسول اکرم ﷺ دتبوک غزوې ته دتګ پرمهال حضرت عبدالله
بن ام مکتوم ؓ کوم چې ړوند وو په نبوي مسجد کې دلمونځ
ورکولو لپاره خپل ځای ناستی ټاکلی وو همدارنګه حضرت عبدالله
بن عمیر ؓ سره له دې چې ړوند وو دبني حطمه امام وو هغه فرمایي
چې زه درسول اکرم ﷺ په مبارکه زمانه کې دبني حطمه امام وم حال
داچې زه ړوند وم «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۲۳»
یادونه: دیوې سترګې والا امامت جائز دی دکراهیت هیڅ لامل نه
لري «کفایت المفتی ج ۳ ص ۸۹»

## تراویح ورکونکی که دشریعت پابند نه وي نو...

سوال: دلاندیني صفاتو څښتن حافظ پسې تراویح کول صحیح دي
او که نه؟ ۱ دسنت په خلاف ږیره درلودونکي پسې ۲ په دولتي
ماموریا دمکتب (سکول) په استاذ پسې ۳ داسې دکاندارچې
دسود دنده کوي او په ناروا طریقه تجارت کوي نو په ده پسې تراویح
کول صحیح دي او که نه؟ جواب: دسنت په خلاف ږیره درلودونکی
سودي کاربار کونکی او په ناروا طریقه تجارت کونکی دامامت ور نه
دی په دوی پسې لمونځ مکروه دی خو که په حاضرینو کې کوم بل
شخص داسې هم نه وي نو دیوازې لمونځ کولو په ځای په داسې ام
پسې لمونځ کول به کار دي ځکه چې دجماعت ډیر لوی فضیلت
او تاکید راغلی دی «فتاوی رحیمیه ج ۳ ص ۸۴»



## که حافظ دلمانځه پابندي کونکی نه وي نو څه حکم دی

سوال: ۱ یو حافظ خو قران کریم صحیح وایي خو دلمانځه پابند نه دی
په داسې حافظ پسې دهغو خلکو تراویح کول کوم چې دلمانځه
پابند وي بیله کراهیته کیږي او که سره له کراهیته؟ ۲ که دیو حافظ
ژبه داسې وي چې سین په شین وایی جیم په ز، یا ذ سره وایي له
کوښښه سره یې په صحي لوستلو قادر نه دی نو په داسې حافظ پسې
دهغو خلکو تراویح صحیح کیږي او که کوم چې قران صحیح لولي؟
جواب: ۱ په توبه کښلو سره کراهیت ختمیږي ځکه چې دکراهیت علت
فسق دی او په توبه کښلو سره فسق زائلیږي ۲ دا حقر په نزد په
فرضو او وترو کې دنه جواز حکم ډیر احتیاط لري او په تراویحو کې
دجواز حکم ښه پراخ دی «امدادالفتاوی ج ۱ ص ۹۵»

## دمعذور حافظ امامت

سوال: حافظ که دعذر له کبله په ناسته تراویح ورکوي نو مقتدیان به
څنګه کوي؟ جواب: که چیرې حافظ صاحب دعذر په وجه په ناسته
تراویح ورکوي او مقتدیان ولاړ وي نو ځینو فقهاؤ ویلي چې دټولو په
نزد لمونځ صحیح کیږي او ځینو ویلي چې دمقتدیانو کښیناستل
مستحب دي ترڅو دامام پیروي پرځای او دمخالفت صورت پاته
نشي دواړه صورتونه روا دي «ترجمه فتاوی عالمګیري ج ۱ ص ۱۸۹

## پر دوو حافظانو پسې دتراویح کولو حکم

سوال: دوه حافظان په ګډه تراویح ورکوي په لسو رکعتو کې یو حافظ
پاو باندې پاره او په نورو لسو رکعتونو کې بل حافظ پاو باندې
سیپاره وایي آیا په لمانځه کې خو به خلل نه راځي؟ جواب: له یوه

قران څخه به زیات نه وایي ترڅو د خلکو شوق معلوم شوی نه وي
تراویح صحیح کیږي په دې شرط چې مقتدیانو ته ګراني نه وي
«مظاهر حق نوی ترتیب»

## دغیرمقلد امامت

سوال: که امام غیرمقلد وي او تراویح د شلو رکعتو پر ځای اته رکعته
ورکوي نو حنفیان به څرنګه پاتې تراویح پوره کوي آیا د امام سره
تروترو کولو وروسته به پاتې پوره کوي او که تروترو مخکې؟ جواب:
پاتې تراویح تروتر وروسته کولای شي او داسې هم کولای شي چې
وتر د امام سره ونه کړي تر پاتې تراویح کولو وروسته وتر وکړي
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۴ دهدایه ۱ ص ۱۳۴ باب النوافل،
فصل قیام رمضان په حواله»

## چاچې دلماخستن لمونځ نه وي کړی د هغه امامت

سوال: دلماخستن جمع وشوه تر دې وروسته چې کله
دتراویحو جماعت پیل کیدی نو حافظ بې دلماخستن له فرض
اداکولو د تراویحو ورکولو لپاره ودریدی او دوه رکعته تراویح یې
ورکړې له مقتدیانو څخه ځینو نیوکه ورباندې وکړه نو حافظ صاحب
لرې کړل شو تر دې وروسته د امام په اقتداء پاتې تراویح اداکړل شوې
د پوښتنې وړ خبره داده چې د مقتدیانو لومړني دوه رکعته صحیح
شول او که نه که چیرې صحیح شوي نه وي نو آیا د هغوی راګرځول
ضروري دي؟ جواب: په مسئوله صورت کې د تراویحو دوه رکعتونه
دراګرځولو وړوو ځکه چې تراویح دلماخستن تر لمانځه وروسته دي
نه مخکې په هماغه وخت کې یې اعاده کول مناسب وو که اعاده ونه



کړل شوه نو وروسته د سهار تر سپیدو مخکې یې وازې راګرځیدلای
شوای اوس وخت تیر شو قضاء یې نشته استغفار وو وایاست او په
دغو دوو رکعتونو کې چې څومره قران ویل شوی وو که مو راګرځولی
نه وی نو بله ورځ یې راوګرزوئ «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۸۵
دکبیري مخ ۳۸۵ په حواله»

## په نارینه پسې د ښځو اقتداء

سوال: که کوم امام فرض لمونځ یا تراویح ورکوي او میرمنې د کومې
پردې یا دیوال شاته پر څه واټن اقتداء وکړي نو د ښځو لمونځ روا دی
که ناروا؟ او د امام په لمانځ کې خو به څه خلل نه راځي؟ جواب:
د دغو میرمنو لمونځ صحیح دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۲»

## د میرمنو د تراویح جماعت

سوال: یو څو میرمنې د قران حافظانې دي داغواړي چې په
تراویحو کې قران مجید په خپل جماعت سره ختم کړي د دوی دا فعل
څرنګه دی همدارازدا خترونو لمونځ هم یو څو میرمنې په جمع کولای
شي او که نه آیا ښځه د ښځو امامه جوړیدلای شي او که نه؟ جواب:
د میرمنو جماعت په دې ډول چې میرمن یې امامه وي مکروه دی که
د تراویحو جماعت وی یا د بل لمانځه په ټولو کې د میرمنو امامت
د میرمنو لپاره مکروه دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۶
درد المحتار ج ۱ ص ۵۲۸ باب الامامة په حواله»
یادونه: د مولانا عبدالحی رحمه الله علیه د میرمنو د جماعت په اړه داسې
فتواده چې په تراویحو کې که ښځه صرف د ښځو امامت وکړي
نو جائز دی که کومه میرمن حافظه وي او د هیریدلو اندیښنه یې وي

نودمولاناعبدالحی رحمه الله دفتوی دعملي کولوګنجائش شته له دې
ماسوادمیرمنې دجماعت لمونځ نه کوي.
«مرتب محمدرفعت قاسمي»

## دحافظ قران کریم چټک ویل

سوال:ځینې حافظان په تراویحوکې دومره تیزقران کریم وایي چې له
یعملون اوتعلمون پرته نورهیڅ نه فهمیږي اوځینې مقتدیان هم
همداسې په بیړه دقران ویل دتراویح دزرختمیدوله امله خوښوي
ددې دواړوحکم څه دی؟ جواب: په درمختارکې راغلي چې ویجتنب
المنکرات یعنی په قران کې دې له منکراتوڅخه ځان وژغوري یعنی
قران دې په تلوارنه وایي همداراز داعوذبالله او بسم الله اوله
اطمینان پریښودوڅخه ډډه وکړي له دې څخه معلومه شوه چې
داسې ویل منکرکاردی کوم چې دثواب پرځای دګناه سبب دی
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۷ د درمختار ج ۱ ص ۶۶۳ مبحث
التراویح په حواله»

## درکعتونوپه شمیرکې داختلاف واقع کیدوحکم

سوال:درکعتونودشمیرپه اړه دمقتدیانوترمنځ اختلاف شو ځینې
وایي چې اتلس وشول اوځینې وایي شل نواوس دچاقول معتبربږي؟
جواب:دتراویح امام چې پرکوم طرف وي دهغه ډلې قول معتبربږي
اوکه ټول شکمن شي نودوه رکعته دنوروکړل شي خوپه جماعت سره
نه بلکه جلاجلا «فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۵۵»
په فتاوی محمودیه کې راغلي:که چیرې ټول لمونځ کونکي اوامام
شکمن وي چې اتلس رکعته تراویح وشوې اوکه شل پوره شوې



نودوه رکعته دبیله جماعت نوروکړل شي که چیرې ټول مقتدیان
خوشکمن وو اما امام ته شک نه وونودوي دی په خپل یقین عمل وکړي
دمقتدیانوویناته دهیڅ اعتبارنه ورکوي اوکه ځینې وایي: چې شل
پوره شول اوځینې وایي نه بلکه اتلس وشول نوکوم طرف ته چې
دامام رجحان وي هغه دې عملي کړي« فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۵۳

## په تهجدکې دتراویحود څوررکعتونوکولوحکم

سوال:که حافظ شپاړس رکعته تراویح ورکړې څلوررکعته یې هغه
وخت ورنکړي اوهغه کوم بل چا ورکړي بیاحافظ څلوررکعته په
تهجدکې په جماعت سره ورکړي نوجائزدي اوکنه؟ همداراز چې
حافظ صاحب خوپه خپله دتراویح نیت وکړی اونورمقتدیان
دتهجدیاهغوی هم پاتې څلوررکعته دتراویحوپه نیت وکړي
نوجائزدي اوکنه؟ په تیره بیاچې دراغونډیدولپاره بلنه ورکوي؟
جواب: تراویح یې که څلوررکعته پریښودې اودشپې په پای کې یې
هغه په جماعت وکړي نوصحیح دي ځکه چې دتراویحووخت له
لماخستنه دسهارترسپیدوپورې وي پرته له تراویحونورنفلونه په
تداعی یعنې تردریوڅلوروزیاتوګروجماعت صحیح نه دی
همداراز دتهجد جماعت هم مکروه دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص
۲۸۴ د درمختار ج ۱ ص ۶۶۳ باب الوتروالنوافل او ص ۶۵۹ مبحث
التراویح په حواله»

## که خدای ﷻ مه کړه حافظ په تراویحوکې وفات شي

سوال: که چیرې حافظ صاحب په تراویحوکې وفات شي نومقتدیان
به څرنګه لمونځ پوره کوي؟ جواب: هغه لمونځ فاسدشوبیابه بل

امام له سره لمونځ وركوي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۷۰ دردالمحتار توك ۱ مخ ۵۵۳ باب الامامة په حواله»

## حافظ په تراويحو كې قران پريږدي

سوال: كه حافظ په تراويحو كې دقران شريف اورول پيل كړي خو په كومه وجه يې په مينځ كې يوه دوې ورځې ونه وايي مثلا ترلسو پاروپورې ووايي او تردې وروسته يې بل حافظ ترپنځلسو پاروپورې ووايي نو اوس به مخكنى حافظ له يوولسمې سپارې پيل كوي كه به له شپاړسمې شروع كوي ؟ جواب: كله چې لومړى حافظ لس پارې ولولي او بيا دوهم ترپنځلسو وويلې نو لومړى حافظ چې كله راشي نو دهغه خوښه ده كه له شپاړسمې شروع كوي او كه له يوولسمې خو دخپل قران پوره كولو لپاره غوره داده چې له يوولسمې شروع وكړي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۵ ».

## دلمانځه لپاره دامام ديو خاص سړي انتظار كول

سوال: كوم امام چې داسې وي چې ترڅو مسجد ته يو يادوه ځانګړي كسان رانشي كه څه هم دلمانځه ټاكلى وخت تيرشي او لمونځ هم وځنډيږي خودى دخپلې دنياوي ګټې په خاطر يادا ړيكو له كبله ددغو خلكو انتظار كوي نو په داسې امام پسې لمونځ كول څرنګه دي؟ جواب: كه چيرې ددنيا په وجه دكوم دين داررئيس انتظار كوي او دحاضرينو مراعت نه ساتي نو امام او مكبر يعنى اقامت كونكى دواړه ګنهګاردي مګر لمونځ پسې كيږي «فتاوى رشيديه كامل ص ۲۸۸ »



## دخپل ځان لپاره دجماعت ځنډول

سوال: كه كوم متولي (دمسجد تصرف كونكى) ياخادم دمسجد او نورداو وايي چې ترڅو مونږ مسجد ته درنه شو جماعت دنه دريږي نو دداسې شخص په اړه شرعي حكم څه دى ؟ جواب: داسې متولي چې دځان لپاره دځنډيدو تاكيد كوي هغه ګنهګاردى او داسې وګړو ته انتظار هم صحيح نه دى هو ! عامو مسلمانانو ته انتظار صحيح دى په دې شرط چې نورو حاضرينو ته به تكليف نه رسيږي او وخت مكروه به نه داخليږي خو د رئيس يا شتمنو دنيادارو انتظار دنه كوي چې ټول پروخت راشي يازياتره راشي نو لمونځ دى وكړي «فتاوى رشيديه كامل مخ ۲۸۷ »

## دتحريمې صحيح الفاظ څه دي

ځينې امامان په تكبير ويلو كې له ډيرې بې احتياطى او دالله اكبرويلو پرځاى الله اكبار وايي يعنى دبا اوراترمينځ الف زياتوي همدارنګه ځينې امامان دالله دلفظ په شروع كې مد كوي اوآلله اكبر وايي دادواړه صورتونه يو مخ غلط دى او په دغودواړو صورتونو كې لمونځ فاسد يږي او كه په تكبير تحريمه كې يې داسې وويل نو دلمانځه پيل كول هم نه صحيح كيږي «مسائل سجده سهوه ۷۳ مخ دصغيري په حواله»

## امام ته تكبيرات ويل څنګه په كاردي

زياتره امامان ليدل كيږى چې دلمونځ وركولو پرمهال انتقاليه تكبيرات دانتقال په حالت كې نه وايي بلكه كله له نقل كيدو وروسته تكبيروايي او كله بل ركن ته ترسيدو مخكې تكبير ختم كړي دمثال

په توګه له ولاړې څخه رکوع ته ځي نو ځيني امامان
تر تيبيدو وروسته الله اکبروايي او ځيني امامان دومره لنډ الله
اکبروايي چې رکوع ته په پوره ډول رسيدو مخکې د الله
اکبرآواز ختم شي همدارنګه سجدې ته د تلو پر مهال او له سجدې څخه
دوهم رکعت ته د ولاړيدو په وخت هم همدا عمل کوي د يادونې وړده
چې په دغو دواړو صورتونو کې تکبيرپه سنت طريقه ادا نشو پوره
سنت هغه وخت اداکيږي چې کله له يوه رکن څخه بل رکن ته د نقل
کيدو سره تکبيرپيل کړی او ځنګه چې دوهم رکن ته ورشي
د تکبيرآواز بند شي او ځيني امامان الله اکبرداډول کشوي چې دوهم
رکن ته تررسيدو وروسته هم ترڅه وخته د دوی د تکبيرآواز اوريدل
کيږي په دومره اندازه تکبير کشول مکروه دي «مسائل سجده بسهو،
ص٧١ د کبيري ص ٣١٣ په حواله»

## دوهم باب

## تراويح په کورکې فضيلت لري او که په مسجد کښې

سوال: د تراويحو لمونځ په کورکې ښه دی که په مسجد کې ؟ جواب:
د امام ابوحنيفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او زياتره شوافعو او ځيني
مالکي علماؤ اتفاقي مسلک دی چې د تراويحو لمونځ په مسجد کې
کول افضل دي لکه چې اميرالمومنين عمرفاروق رضي الله عنه او تر هغه
وروسته نورو اصحابو کرامو رضي الله عنهم په مسجد کې تراويح کول مقرر کړي
دي او بيا پردې د ټولو مسلمانانو تل عمل راغلی ځکه چې
د تراويحو لمونځ د دين شعار دی او د اختر لمانځه ته ورته والی لري
«مظاهرحق نوی ترتيب ١۴»



ټولې تراويح د احنافو په نزد شل رکعته دي او هغه په جماعت سره
اداکول سنت دي که چيرې ټول محلې والا يا کليوال تراويح پريږدي
نو پر ټولو د سنت د پريښودلو وبال شته.
که چيرې زياتره محلې والا يا کليوال خو په جماعت سره تراويح وکړي
خو اتفاقاً يو ه يادوو کسانو په جماعت ونکړې بلکه په کورکې يې
يوازې وکړې بيا هم سنت اداشول «فتاوی محموديه ج ٢ ص ٣۵٠
د کبيرې ص ٣٨۴ په حواله»

## په کوم مسجد کې تراويح فضيلت لري

سوال: د تراويحو لمونځ په کوم مسجد کې کول افضل دي ځکه چې
نژدې جامع مسجد هم شته کله چې په جامع مسجد کې لمونځ کول
زيات افضل ښودل شوي دي ؟ ځواب: په درالمختارکې راغلي چې
د محلې مسجد د محلې والا په حق کې د جامع مسجد څخه افضل دی
او شامي هم دا ليکلي لان له حقا عليه فليؤده» يعنی پر محلې
والو د محلې د مسجد حق دی د هغه اداکول په کار دي «درمختارج ١
ص ٧١٧»

## د محلې د مسجد حق

سوال: زمونږ د محلې په مسجد کې تراته رکعته تراويحو پورې لمونځ
کونکي وي بيا کميدل پيل شي نو که مونږ دا مسجد پريږدو په بل
مسجد کې تراويح اداکوو نو څنګه دي څه قباحت خو به نه لري ؟ جواب
د محلې په مسجد کې شل رکعته تراويح په جماعت سره کيدل
ضروري دي ځکه نو تاسو ته په خپل مسجد کې تراويح کول په کار دي
که څه هم لمونځ کونکي لږوي که د محلې په مسجد کې تراويح ونه

شوې نوټول ګنهګارېږي «فتاوى رحيميه ج۱ ص ۳۴۹ دشامي ج۱ ص ۶۶۰ په حواله»

## آياخپل مسجد پرېښودلاى شو

سوال: كه چيرې په بل مسجد كې ښه قران ويونكى حافظ وي نوآيادهغه اوريدوته ورتلاى شو؟ جواب: كه دمحلې دمسجد امام قران غلط وايي نودخپل مسجد پرېښودل اوپه بل مسجد كې تراويح كول هيڅ پروانه لري همدغه حكم په هغه صورت كې دى كله چې دوهم حافظ په قرائت كې نرم اوپه آوازكې ښه وي اوكه دده په محله كې ختم نه كيدى نودده لپاره دخپل مسجد پريښودل اودبل مسجدلټه كول په كاردي «ترجمه فتاوى عالمګيري ج۱ ص ۱۸۶» كه دخپل مسجدامام دقران كريم ختم نه كوي نوبياپه كوم بل مسجدكې چيرې چې ختم وي تراويح كول هيڅ پروانه لري ځكه چې دختم سنت هلته حاصلېږي «فتاوى محموديه ج۲ ص ۲۵۵»

## دمسجد پربام تراويح كول

سوال: زمونږ په مسجدكې دګرمۍ په موسم كې دلماخستن لمونځ، تراويح اونوردمسجد پرچت كيږي په مسجد كې دننه نه كيږي ددې شرعي حكم څه دى؟ جواب: دګرمۍ له امله دننه مسجد ياغولى دمسجد پرېښودل پربام دلماخستن، تراويحواونورولمونځونوكول مكروه دي هو! ځوك چې دننه په مسجد اودمسجد په انګړكې ځاى ونه مومي كه هغوئ سربيره لمونځ وكړي نوبيله كراهته روادى ځكه چې دامجبوري ده پركعبه شريفه سربيره لمونځ كول دبې ادبى اوسپكاوي له امله مكروه دي هو! كه دودانولواوترميم په خاطر



ختل وي نومكروه نه دي همدارنګه كه مسجدوي دهغه پرچت ختل مكروه دي اوپرهمدې بنسټ داهم مكروه دي دګرمۍ دسختى له كبله پرچت جماعت مه كوئ مګر كه چيرې په مسجد كې ځاى نه وي نوددې مجبوريت په وجه پرچت ختل نه مكروه كيږي په هرحال دګرمۍ سختي اړتيااومجبوريت نه بلل كيږي ځكه چې له ګرمى څخه يوڅه تكليف پيداكيږي اوكله چې مشقت اوتكليف زيات شي اجراوثواب هم زياتيږي نودې ته مجبوريت نشي ويل كيداى په فتاوى عالمګيري پنځم ټوك ص ۳۲۲ كې راغلي چې دټولو مسجدونوپه بامولمونځ كول مكروه دي كه چيرې مسجد تنګ وي اودلمونځ كونكيولپاره پراخي نه وي نودا اړتياله كبله پورته ختل مكروه نه دي په ګرمۍ كې دمسجد په صحن (غولي) كې په جماعت لمونځ كول بې له څه پرواصحيح دى كه كوم ځاى دمسجد غولى له مسجد څخه وتلى وونودمسجد بانى كه هغه نه وه نودمسجد خلك دي دهغه په مسجد دګډولولپاره ګامونه پورته كړي ترڅوهغه ځاى هم په مسجد كې داخل شي بيانوپرهغه هم دمسجد ټول احكام جاري كيږي «فتاوى رحيميه ج ۳ ص۳۱ دكبيري ص۳۹۲ په حواله اومجموعه فتاوى سعديه ص ۱۴۸»

## په دوكانوكې دتراويحوكول

سوال: دبازارخلك صرف دخپلې دندې دزيان له ويرې په دوكانوكې جلاجلا دتراويح جماعت كوي ددوى دافعل څنګه دى؟ جواب: تراويح په مسجدكې كول اودختم تراويح په مسجدونوكې اوريدل سنت دي بې له عذره مسجدته نه تلل اوپه دوكانوكې تراويح كول

دسنتو ترک دی «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۷۹ ددر المختار ج۱ ص ۲۲۰ مبحث التراويح په حواله»

## په کورکې تراويح په جماعت کول

سوال: دتراويحو لمونځ په کورکې په جمع او مسجد ته نه تلل څرنګه دي؟ جواب: که څوک داسې جماعت وکړي چې د مسجد جماعت ته ضرر و نه رسيږي صحيح دی ليکن دا خلک به د مسجد له فضيلت څخه بې برخې وي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۵۱ ددر مختار ج۱ ص ۶۶۰ او شامي ج۱ ص ۵۲۱ په حواله»

## دلماخستن لمونځ په مسجد کې او تراويح په کورکې کول

سوال: دلماخستن لمونځ په جماعت سره کونکی که تراويح په کورکې وکړي نو ګنهګار دی او کنه؟ جواب: تراويح په جماعت سره سنت مؤکد کفائی دي که د محلې يا کلي په مسجد کې تراويح په جماعت سره کيدې او کوم شخص په کورکې يوازې تراويح اداکړي نو نه ګنګاريږي خو د جماعت له فضيلته بې برخې کيږي «فتاوی رحيميه ج۱ ص ۳۴۹ ددر مختار مع شامي ج۱ ص ۶۶۰ په حواله»

## ديوه حافظ څوځايه ختم کول

سوال: ځينې حافظان په پنځه اووه ورځې کې په يوه مسجد کې قرآن کريم په تراويحو کې ختم کړي په بل مسجد کې بل ختم په تراويحو کې کوي دا کار صحيح دی که څنګه؟ او ددوهم مسجد والو تراويح کيږي او که څنګه؟ حافظان او ځينې عالمان دې ته جواز ورکوي او ځينې وايي چې د حافظ يو ختم کول سنت دي دوهم ختم نفل دی او د مقتديانو ختم سنت دی نو د سنت کونکيو لمونځ په



نفل کونکي پسې څنګه کيږي جواب: په يوه مسجد کې په پنځه اووه ورځې کې تر ختم کولو وروسته په بل کې د حافظانو ختم کول صحيح دي او ددوهم مسجد والاوو تراويح صحيح دي ځکه چې د تراويح لمونځ په ټول رمضان کې مؤکد سنت دی نو په دوهم مسجد کې چې حافظ صاحب کومې تراويح ورکړې هغه هم سنت مؤکده شوې او د مقتديانو تراويح هم سنت مؤکده شوې ځکه ددواړو لمونځ يو شو پرته له دې په نفل کونکي پسې سنت هم صحيح کيږي او دا شبه غلطه ده چې د قرآن کريم يو ځل ختمول سنت مؤکد دي دوهم او دريم ختم نفل دی ځکه چې د امام لمونځ سنت مؤکد دی د ختم له سنت کيدو څخه هغه لمونځ له سنت کيدو خارج نه شو او د مقتديانو په لمونځو کې هيڅ نقصان رانغلی خو افضل او غوره په دې زمانه کې دا دي چې حافظ امام تر يو ختم زيات په تراويحو کې ونه وايي ترڅو مقتديانو ته په تراويحو کې شرکت کول ستونزمن نه شي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۹۳ ددر مختار ج۱ ص ۶۶۲ په حواله»

## دتراويحو دوه جماعتونه کول

سوال: د حافظانو د ډېرښت له کبله ترڅو دوی قرآن په ياد وي د دې مقصد لپاره مونږ د رمضان المبارک په مياشت کې دا معمول جوړ کړی چې د لماخستن لمونځ مونږ ټول د محلې په مسجد کې په جماعت اداکوو تردې وروسته يو څه حافظان د مدرسې په ودانۍ کې تراويح ورکوي چيرې چې لږ لمونځ کونکي نور هم ورسره شامليږي او پاتې حافظان هم دلته په مسجد کې تراويح ورکوي د پوښتنې ځای دا ده چې د قرآن د خوندي کولو په نيت په دې ډول د تراويحو دوه جماعتونه

جورول څنګه دي ؟ جواب: په بيان شوي سوال کې له جماعته پاتيدل
او شاته کيدل مقصد نه دي د دې په وجه دا صورت جائز دی منع نه دی
په مدرسه کې په جماعت سره کولو خو به د جماعت ثواب و موندل شي
اما د مسجد فضيلت نه حاصليږي د دې جبران د قران د حفاظت په
مقصد سره انشاالله پوره کيږي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۴۱۵ »

## په يوه مسجد کې د دوو حافظانو تراويح ورکول

سوال: په پاني پت کرنال کې دا دود او رواج دی چې دوه حافظان په
تراويحو کې قران کريم وايي په لسو رکعتونو کې يو حافظ او په
لسو کې بل دا رنګه کول څنګه دي ؟ جواب: د پاني پت د رواج په رنګه
دلته هم په ځيني مسجدونو کې داسې کيږي دا هم جائز دي که دوه
حافظان تراويح ورکوي نو مستحب دا دی چې هر يو حافظ تر ترويحه
پوره کولو وروسته بيل شي که يو حافظ بيله ترويحې پوره کولو سلام
وګرزوي مثلاً تر شپږ يا لس رکعته وروسته راشاته شو نو دا ښه نه دي
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۵ و ترجمه فتاوی عالمګيري ج ۱ ص
۱۸۲ »

## د خو حافظانو په ګډه تراويح ورکول

سوال: زمونږ په مسجد کې څلور حافظان په ګډه تراويح ورکوي اول
حافظ څلور رکعته ورکوي دوهم حافظ اته رکعته ورکوي دريم
څلور څلور رکعته ورکوي داسې کول صحيح دي که څنګه ؟ جواب:
غوره دا ده چې يو حافظ يا دوه حافظان په ګډه تراويح ورکړي که
داسې جيد او همتناکه نه وو او څو حافظان تراويح ورکړي نو دا هم



صحيح دي تراويح صحيح کيږي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۸۹
د عالمګيري ج ۱ ص ۲۴ په حواله »

## لس لس رکعته په دوو مسجدونو کې ورکول څنګه دي

سوال: په يوه منسجد کې خطيب امام مقرر دی تراويح په دې ډول
ورکوي چې د لماخستن فرض بل څوک ورکوي او د تراويحو په
لسو رکعتونو کې پاؤ باندي سيپاره حافظ وايي پاتې تراويح په
نورو سورتونو له جماعت والو څخه يو شخص ورکوي تر دې وروسته
حافظ بل مسجد ته لاړ شي همغه پاؤ باندي پاره په لسو رکعتو تراويح
کې وايي دا صورت جائز دی او که څنګه ؟ جواب: د عالمګيري له
روايت څخه معلوميږي چې لس لس رکعته تراويح په
دوو مسجدونو کې ورکول صحيح دي خو د قران کريم په ختم اجرت
او معاوضه صحيح نه ده «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۱ د عالمګيري
ج ۱ ص ۲۲۲ فصل فی التراويح په حواله »

## په يوه مسجد کې دوهم جماعت

سوال: د تراويحو او وترو جماعت وشو څه خلک وروسته راغلل
نو دوهم جماعت وکړي او که نه ؟ جواب: دوهم جماعت دې په دغه
مسجد کښې نه کوي دليل د دې دا دی چې په يوه مسجد کې
د تراويحو په څو جماعتونو کولو هغه حالت را منځته کيږی له کوم
څخه د بچ کيدو لپاره چې دوهم خليفه عمر فاروق ؓ متفرق لمونځ
کونکي د يوه امام په اقتداء کې راغونډ کړي ؤ په يوه مسجد کې
د متعددو جماعتونو لړۍ د عمر فاروق ؓ د ارشاد مطابق له غوري

طريقې خلاف ده «فتاوى دار العلوم ج ۴ ص ۳۰۰ د کبيري ص ۳۸۳ په حواله»

په کوم مسجد کې چې يو ځل تراويح وشي نو په همدغه شپه کې هلته دتراويحو دوهم جماعت کول جائزنه دي خو يوازې يوازې کول صحيح دي «فتاوى محموديه ج ۲ ص ۳۵۰»

## په يوه مسجد کې دوه ځايه تراويح

سوال: که په يوه مسجد کې دوه حافظان جلا جلا تراويح ورکړي په مينځ کې ديوال ياکومه بله داسې پرده وي چې ورڅخه ديو بل اوازته حرج نه پيښيږي نو دا جائزدي او که نه؟ جواب: په مسجد کې دوه ځايه تراويح ورکول په دې شرط چې دنفسانيت په وجه نه وي او يو بل ته حرج نه وي جائزدي مګر افضل همدغه ده چې په يوه امام پسې ټول لمونځ وکړي «امداد الفتاوى ج ۱ ص ۴۷۹»

## په تراويحو کې تريوه ختم زيات ويل څنګه دي

سوال: په تراويحو کې چې کوم حافظ دوه درې ختمه کوي دا څرنګه دي؟ سنت مؤکده خو صرف يو ختم دى دنورو به حکم څه وي همدا رنګه که يو حافظ په څو مسجدونو کې ختم کوي نو څه حکم به وي او نورو مسجدوالا وو ته دختم ثواب شته او کنه؟ جواب: په درمختار کې دي چې يو ځل ختم سنت دى دوهم ځل فضيلت دى او درى واره غوره دي او په بل مسجد کې دوهم ختم صحيح دى دوهم مسجدوالو ته دسنت ختم ثواب ورکول کيږي «فتاوى دار العلوم ج ۴ ص ۲۷۴ د درمختار ج ۱ ص ۲۲۲ باب الوتر والنوافل مبحث فى التراويح په حواله»



## په تراويحو کې دقران داوريدو ثواب ورکول کيږي او کنه؟

سوال: زيد وايي چې په تراويحو کې دوه شيان دي اول قرائت کوم چې فرض دى دوهم مؤکد سنت کله چې په تراويحو کې قران کريم وويل شونوله دواړو شيانو څخه صرف ديوه شي ثواب حاصل شويعنې که يې دسنت مؤکده ثواب حاصل کړنو دقرائت له ثوابه بې برخې شو ترتراويحو وروسته دې په همدغه وخت په يو چا قران کريم ولولي په خپله دې واوري ترڅو دواړه ثوابه حاصل شي ځواب: دزيد داوينا غلطه ده په تراويحو کې دقران کريم په ويلو ونکواو اوريدونکو ته هم دقران ثواب ورکول کيږي «فتاوى دار العلوم ج ۴ ص ۲۴۹»

## ديوه شخص په مراعات دتيرې ورځې قران کريم راګرځول څنګه دي

سوال: حافظ دکوم چاپه رعايت دقران کريم ترتيب پوره کړى دامعنى چې که کوم شخص په تراويحو کې دقران کريم له اوريدو څخه بې برخې شو نو بيا هغه دوهمه ورځ په شل رکعته کې ويل څنګه دي؟ کله چې مقتديانو ته بوج او تکليف او وخت تنګ وي حافظ دداسې چازياتره مراعت کوي نو په داسې حافظ پسې لمونځ روادى کنه؟ جواب: لمونځ خو په ده پسې روادى اما په خپله دا کار چې ديوه شخص رعايت وکړي او نورو ته تکليف جوړوي تحريمي مکروه دى خو که هغه شخص فسادي وي چې له هغه څخه دزيان رسولو انديښنه وي نو مکروه نه دي «امداد الفتاوى ج ۱ ص ۴۸۹»

# دریم باب

## سماع

### دسماع اجرت

سوال: دقران دسماعت (اوریدلو) په اجرت اوویلوپه اجرت کې څه فرق دی لومړی ولې روااودوهم ولې ناروادی ؟ جواب: دقران کریم داوریدوغرض دادی چې چیرې له حافظ څخه هیرشي هلته یې سامع وروښیي نودا تعلیم دی اوپه تعلیم داجرت اخستل جائزدي په خلاف داورولوچې په هغه کې تعلیم مقصدنه دی «وګوری امدادالفتاوی ج ۱ ص ۴۹۲»

### بیله سامع قران کریم ویل

سوال: دروژې په میاشت کې په تراویحو کې بیله سامع دقران شریف ویل جائزدي اوکنه ؟ جواب: که دحافظ قران کریم ښه پوخ وي نوبیله سامع ویل هم صحیح دي که چیرې هیریاشک شونوترسلام ګرزولووروسته دې وګوري که کومه غلطي وي نوبیرته یې دراوګرزوي خوغوره داده چې سامع وي ترڅوډاډمن وي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۴»

### حافظ ته فتحه څوک ورکړي

سوال: که حافظ په تراویحو کې غلط شي اوسامع یې په ښه ډول نشي ورښودلای نوکه له دوهم یادریم صف څخه کوم بل څوک فتحه ورکړي نوڅه پروالري ؟ حافظ صاحب وایي که فتحه راکوي نوپه اول صف کې دریږه نوکه ناوخته راتلونکی حافظ په لومړي صف کې ځای



ونه موند نوآیاهغه دفتحې ورکولو حق لري اوکنه.؟ جواب: که چیرې سامع مقرروي نوهغه ته په کاردي چې غلطي وروښیي کوم بل چاته بیړه کول نه دي په کارله دې څخه په لمانځه کې انتشاراوګړکیچ رامنځته کیږي خوکه هغه یې وروښي ښودلای یایې سم ورونه ښیی نواوس چې یې هرڅوک صحیح ورښودلای شي پرهغه غلطي اصلاح کول فرض دي په هرصف کې چې ولاړوي که لري وي اوکه نږدې پرهغه فرض ده چې دغلطۍ اصلاح وکړي که اصلاح نه کوي نوګنهګاریږي خوداضروري ده چې په لمانځه کې له حافظ سره شریک وي که په اول صف کې وي اوکه په کوم بل صف کې اوکه په لمانځه کې شریک نه وي هغه که غلطی وروښودله اوامام دهغه په ښودلوغلطي اصلاح کړه نولمونځ فاسدیږي «فتاوی رحیمیه ج ۳ ص ۸۴»

### کوچنی سامع به چیرې دریږي

سوال: سامع که کوچنی وي نوآیاهغه په اول صف کې درولای شو؟ جواب: دیارلس کلن امام نشي جوړیدای که بالغ نه وي خوپه تراویحوکې دښودلولپاره هغه په اول صف کې درولای شي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۴۷»

### آیاسامع دحافظ په برابري درولای شو

سوال: په تراویحو کې که حافظ اوسامع په برابري ودریږی که حافظ ته دسماع عذروي اوکنه وي داسې څنګه دي ؟ جواب: که څه ارتیاوی مثلاً له لیرې څخه حافظ صاحب دسامع په ښودلو نه

پوهيږي نو په برابري کې دريدل صحيح دي او بې له اړتيا بښه نه دي
«فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۵»

### قران کريم ته په کتو سماعت کول

سوال: په رمضان المبارک کې حافظ تراويح ورکوي نو يو سړي قران
کريم پرانستى ناست وي او نږدې مقتدي ته يې نيولى وي هغه قران
ته په کتو فتحه ورکوي او قران شريف نيونکى په جماعت کې شريک
نه وي کله چې حافظ صاحب د دوهم رکعت رکوع کوي نو ور سره
شريک شي او يو رکعت تر سلام وروسته را وګرزوي په دې ډول لمونځ
فاسديږي او که نه؟ جواب: په درمختار کې راغلي چې په لمانځه کې
قران شريف ته په کتو ويل يا اوريدل په دواړه صورتونو کې لمونځ
فاسديږي نو دغه صورت چې په پوښتنه کې ترې يادونه وشوه په دې
صورت کې هم د لمانځه د فاسيديدو انديښنه ده ځکه دا رنګه کول نه
دي په کار «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۶۸ درمختار ج ۱ ص ۵۸۳
باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها په حواله»

### د هيريدو له امله چوپه خوله فکر او سوچ کول څرنګه دي

سوال: ځينې حافظان چې قران کريم وايي ورځينې هيرشي
نو بيا خاموش ولاړ فکر کوي کله په ناسته کې تر التحياتو مخته
يا وروسته چورت وهي د دې حکم څه دى؟ جواب: که
د دريو تسبيحاتو په اندازه چورت ووهي چوپه خوله شي نو د سهوې
سجده واجبيږي او که په ويلو چورت وهي نو سجده سهوه نه
واجبيږي.



### د هيريدو پر مهال يو ځاى بل ځاى ويل

سوال: له ځينې حافظانو څخه که د ويلو پر مهال قران هيرشي نو نه
چوپيږي خو کله په دې سورت کې او کله په هغه سورت کې يو ځاى بل
ځاى وايي که ورپه ياد شي نو سم ويل پيل کړي او که چيرې ورپه
ياد نه شي نو تر څه پريشانى وروسته رکوع وکړي لمونځ ختموي
خو په ياد ورتلو او نه ورتلو دواړو صورتونو کې سجده سهوه کوي
ايا د سهوې سجده کول په کار دي او که نه؟ جواب: په دغه دواړه
صورتونو کې د سهوې سجده کول په کار دي «فتاوى دارالعلوم ج ۴
ص ۲۵۷»

### حافظ د سامع د ښودلو تر وخته چوپ پاته کيدلاى شي که نه؟

سوال: حافظ غلط شي او د سامع تر ښودلو خاموش وي آيا په دې سره
په تراويحو کې خو به کوم خلل نه راځي؟ او سجده سهوه وکړي
او که نه؟ جواب: تراويح صحيح کيږي د راګرزولو اړتيا يې نشته
د فتحې د اوريدو لپاره حافظ د ضرورت په خاطر خاموش پاتې کيدل
لمونځ نه فاسدوي سجده سهوې ته هم اړتيا نشته ليکن که له
پنځو لمونځونو څخه کوم لمونځ وي نو امام ته په کار دي چې که
تر دريو اياتونو کم ويل شوي وي نو د فتحې په انتظار د نه دريږي بلکه
کوم ځاى چې ورياد وي هغه دې وايي او که دري آيتونه ويل شوي
وو نو رکوع دې وکړي «فتاوى رحيميه ج ۴ ص ۳۹۳»

### د حافظ د تنګولو حکم

سوال: د ځينو حافظانو عادت وي چې کوم حافظ لومړى ځل تراويح
ورکوي د هغه د اورولو پر مهال د هغه د ورخطا کيدو او ور څخه

دهیرولو په خاطر پښې په زور په ځمکه ټکوهي ،غاړې تازه کوي
اویا ټوخي ددې حافظانو په اړه څه حکم دی ؟ جواب: داسې کول
جائزنه دي په حدیث شریف کې رسول اکرم ﷺ له اغلاطو څخه منع
کړې ده یعني داسې کارونه چې سړی په غلطۍ کې اچوی له هغوی
څخه ځان ژغورل ضروري دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۲ بحواله
حدیث ابوداؤد مشکواة کتاب العلم ص ۳۵ »

## صرف دفتحې ورکولو په نیت په تراویحو کې برخه اخیستل

سوال: کوم شخص چې په دې نیت په تراویحو کې برخه اخلي چې که
حافظ غلط شو نو تر ښودلو وروسته به جلا شم نو په دغه صورت
کې دغه سړی مقتدي بلل کیږي او کنه ؟ جواب: په تراویحو کې برخه
اخیستونکی مقتدي شو اودلمانځه پوره کول پرده لازم دي حافظ
خو به فتحه واخلي هغه ته څه معلومه ده چې دی تر ښودلو وروسته
جلا کیږي دامام لمونځ صحیح شو په دې نیت شریکیدل بد دي دغه
لمونځ دده په ذمه پوره کول لازم دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۸
بحواله هدایه باب النوافل ج ۱ ص ۱۳۱ »

## په تراویحو کې دغلطې فتحې په ورکولو حافظ پریشانه کول

سوال: ځینې زاړه حافظان نوی حافظ په غلطه فتحه ورکولو پریشانه
کوي ددې څه حکم دی ؟ جواب: دا کار هم دهغه اغلاطو له جملې څخه
دی دکوموچې په حدیث شریف کې غندنه شوې چې داحدیث په دې
ډول دی «روی ابوداؤد عن معاویه قال ان النبی ﷺ نهی عن
الاغلوطات» یعني کوم کارونه چې یو مسلمان په غلطۍ کې اچوی له



هغوی څخه ځان ژغورل ضروري دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۸
دمشکواة کتاب العلم ص ۳۵ په حواله »

## په نیت تړلو فتحه ورکړی یا بې اودسه فتحه ورکړي

سوال: ځینې حافظان دبل حافظ قرائت له لمانځه دباندې په ناسته
اوري کله چې دهغه هیر شي نو په بیړه په صف کې یا صف ته نږدې نیت
وتړي هغه ورو ښیي او بیا سمدستي نیت مات کړی کښیني او ځینې له
خدای ﷻ څخه نه ویریدونکي په داسې صورت کې کله داسې هم
کوي چې بې اودسه یا پر اوبو دقدرت مندلو سره تیمم ووهي نیت
وتړي بیا فتحه ورکوي په دغه دواړه صورتونو کې دفتحې ورکول
او اخیستل څه حکم لري ؟ جواب: که چیرې تر نیت تړلو وروسته فتحه
ورکړی نو دامام په لمانځه کې هیڅ خلل نه راځي خو پر هغه دنیت
ماتولو ګناه شته او قضاء لازمیږي اوکه بې اودسه فتحه ورکړي
یا داوبو په شتون کې تیمم ووهی فتحه ورکړي او امام فتحه واخلي
نو دده لمونځ فاسد شو اود مقتدیانو لمونځ هم فاسد شو «فتاوی
دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۸ دعالمګیري کشوری باب سابع
مایفسد الصلاة ج ۱ ص ۹۰ په حواله »

## د تراویحو پر وخت شا ته خبرې کول

سوال: ځینې مقتدیان داسې کوي چې کله حافظ په تراویحو کې دوې
درې یا زیاتې پارې ووایي نو دوی له صفه لیرې له لمانځه دباندې
چوپه خوله ناست یا پراته وی او یا ورو ورو خبرې سره کوي
خو دخاموشۍ په حالت کې هم دقران کریم اوریدل هیڅ کله ددوی
مقصد نه وي دوی ته داوریدو ثواب ورکول کیږي اوکنه په شریعت

کې ددغه فعل څه حکم دی ؟ جواب: ښکاره خبره ده چې داسې وخت خبرې کول ګناه او ثواب ختمونکې دي او چو په خوله کیناستل یا څملاستل که داوریدو نیت یې هم نه وي خو د قرائت او ازیې غوږ وته رسیږي نو داوریدو ثواب ورکول کیږي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۸۹ ددر المختار ج ۱ ص ۵۰۹ فصل فی القرائت په حواله»

## په تراویحو کې درکوع انتظار کول

سوال: دتراویحو پر مهال ځینې خلک ناست وی کله چې حافظ رکوع ته ځي نو په رکوع کې ورشاملیږي ددې څه حکم دی ؟ جواب: داسې کول منع دي «فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۵۴ دفتاوی عالمګیري ج ۱ ص ۱۱۹ په حواله»

## دسامع دنیستی په مهال قران کریم ته په کتو فتحه ورکول څنګه دي

سوال: دروژې په میاشت کې ډیر داسې ځایونه پیدا کیږي چې پرته له تراویح ورکونکې حافظ کوم بل حافظ چې سامع مقرر شي نه وي که په داسې صورت کې کوم مقتدی چې حافظ نه وي قران کریم خلاص کړ او فتحه یې ورکړه او دلمانځه په لومړي رکعت کې په څه وجه نه وو شامل شوی آیا دا کار جائز دی او کنه ؟ جواب: کوم څوک چې دامام سره په لمانځه کې شریک نه وی هغه امام ته په قرائت او نورو کې فتحه نه شي ورکولای که یې فتحه ورکړه او امام واخیسته نو دامام او خلکو لمونځ فاسد شو «کفایت المفتی ج ۳ ص ۴۱۲»



## شیعه حافظ فتحه ورکولای شي کنه

سوال: که چیرې په تراویحو کې حافظ غلطیانې کولې او سامع هم غلطیدی او شیعه حافظ موجود وي که هغه نیت داقتداء وکړي فتحه ورکړي نو دامام ابو حنیفه په نزد جائز دی او کنه ؟ جواب: که شیعه داسې وی چې نه تبراګویه او نه دحضرت ابوبکر صدیق ؓ له صحابیت څخه منکر وی او نه په بی بی عائشه ؓ پسې افترا کونکی وی نو په دې صورت کې فتحه ورکول جائز دی او دده په ورښودلو دفتحه اخیستونکي او دهغه دمقتدیانو لمونځ هم صحیح دی او که دا شیعه غالي وی یعنی لاندې شیان په کې موجود وي تبراګویه وی دحضرت ابوبکر ؓ دصحابیت څخه منکر او په بي بي عائشه ؓ پسې تهمت ویونکی وي نو داسې شیعه چونکه کافر دی نو دده په فتحه ورکولو او دامام دده په فتحه اخیستلو دامام او دمقتدیانو دټولو لمونځ باطلیږي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۴۹ بحواله درمختار فصل فی المحرمات ج ۱ ص ۳۹۸»

## درکوع انتظار کول

چې جماعت دریږي یو کس ناست وي کله چې امام رکوع ته ځي نو سمدستی نیت وتړي او له امام سره په رکوع کې برخه واخلي دا کار مکروه او له منافقینو سره مشابهت دی «فتاوی محمودیه دوهم ټوک ص ۳۵۴»

## څلورم باب

### ترویحه

### ترویحه ولې کول کیږي

په تراویحو کې نرهرو څلورو رکعتونو وروسته یو څه وخت ناستې ته ترویحه ویل کیږي تراویح دترویحه جمع ده ددې اصل معنی داستراحت ده کوم چې له راحت څخه اخیستل شوې چونکه په څلور رکعتونو کې پنځه ترویحې کیږي ځکه دې لمانځه ته تراویح ویل کیږي اووجه دتسمیه یې هم داده چې په لمانځه کې دشریعت له نظره راحت دی درسول الله ﷺ ارشاددی هغه مبارک فرمایي « قرة عینی فی الصلاة » یعني زما دسترګو سړوالی په لمانځه کې دی اوپه یوبل حدیث کې دده مبارک ﷺ ارشاددی دروژاتي لپاره دوې خوشحالی دي یوه دروژ مات پروخت اودوهمه خوشحالي هغه وخت کله چې له خپل رب سره ملاقات کوي په ظاهرله ملاقات څخه مرادتراویح دي په یوه حدیث کې درسول الله ﷺ ارشاددی: ارحنابالصلاة یابلال ! یعنی دلمانځه په تکبیرویلو مونږته آرام راورسوه » په هرحال ددې ډول حدیثونو پربنسټ ویل کیدای شي چې دڅلوررکعتونونوم ترویحه ځکه ده چې له دې څخه راحت اوروحانی سکون حاصلیږي دترویحوپه مینځ کې دیوې ترویحې په اندازه کیناستل مستحب دي اوکه حافظ په دې پوهیدی چې دپنځمې ترویحې اووتروترمنځ کیناستل مقتدیانوته ګران تمامیږي نو نه دې کښیني په پنځمه ترویحه کې اختیاردی «اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص ۱۲۰»



### په ترویحه کې څومره ناسته په کار ده

سؤال: دترویحې یعنې ترڅلوررکعتونووروسته څومره اندازه کیناستل مراددي دترویحې مرادڅه ده آیاهغه څلورر کعته په کوموکې چې وشوه یاچې په څومره وخت کې چې څلورر کعته لنډنفل وکړل شي ؟ جواب: بعدکل اربعة بقدرهاڅخه په ظاهره معلومیږي چې هغه ځانګړي رکعتونه چې په څومره وخت کې شوي هغه مراددي «امدادالفتاوی ج۱ ص۰ ۴۹»

دعالمګیري په ترجمه کې دي چې که لمونځ کونکیوته ګرانه اودجماعت لږیدواندیښنه وي نوتردې هم لږ کیناستل صحیح دي خودمقتدیانودبیږي اوګران تمامیدوله امله درکوع اوسجدې تسبیحات ،سبحانک اللهم اودرودپریښودل یومخ نه دي صحیح خوددعایعني سبحان ذی الملک والملکوت الخ اونوروپریښودل په دې شرط چې دمقتدیانوتلواروي هیڅ پروانلري «ترجمه عالمګیري ص ۱۸۵»

### په ترویحه کې په لوړاوازدرودویل

سوال: دتراویحودڅلوررکعتونوتراداکیدووروسته په ترویحه کې ځینې حضرات تسبیح سوکه ووایي په سردارعالم تردرود وروسته په لوړاوازدمحمد ﷺ نعره پورته کړي شرعاً په کوم کتاب کې ددې اصل شته او کنه ؟ جواب: ددې اصل (حقیقت په شریعت کې هیڅ نشته فقهاؤدالیکلي چې دتراویحوپه ترویحه کې یعنې ترڅلوررکعتونووروسته ورته اختیاردی که تسبیح وایي یانفل

كوي ياقران كريم وايي ياچوپ كيني «فتاوى دارالعلوم ج۱ ص۲۴۶ دردالمحتار ج۱ ص۶۶۱ مبحث التراويح په حواله»

## په ترويحه کې د دعا ثبوت شته کنه

په تراويحو کې چې ترهرو څلوررکعتونووروسته کوم ذکر مشهوردی هغه په هيڅ روايت اوحديث کې نه موندل کيږي خوعلامه شامی دقهستاني اونوروپه حواله رانقل کړی دی چې ترترويحه وروسته دي داذکروکړل شي: سبحان ذالملک والملکوت سبحان ذی العزة والعظمة والهيبة والقدرة والکبيرياء والجبروت سبحان الملک الحی الذی لاينام ولايموت سبوح قدوس ربنا ورب الملائکة والروح اللهم اجرنا من النار يامجير يامجير يامجير «شامی ج۱ ص۶۶۱»

## ترهروڅلوررکعتونووروسته دعاغوښتل

سوال: په تراويحو کې ترهروڅلوررکعتونو دحافظ اومقتديانو په ګډه دعاغوښتل رواج دي آيادا سنت طريقه ده؟ حافظ صاحب په زوره دعاکوي بل څوک هيڅ نشي ويلای نو آيا په ترويحه کې صرف دعاکولای شي؟ جواب: ددعاغوښتلو دادستورله سنت سره اړخ نه لګوي داهسې دود اورواج دی شريعت مقدسه چې دکوم شي اجازه کړې په هغه کې لاسوهنه بې ګټې ده اوله نوروکړنو دمثال په ډول له تلاوت، تسبيح، نفلواونوروڅخه دمنع کولو مترادف ده ځکه نوبيان شوې طريقه دترک وړده که د چازړه غواړي ويې دې وايي خوپه داسې ډول چې بل چاته حرج اوتکليف نه وی دی اختيارلری چوپه خوله کيني ياکلمه، تلاوت او درودشريف وايي يانفل لمونځ وکړي خوپه



جماعت سره مکروه دي يادا تسبيح سبحان ذی الملک الخ ووايي «فتاوی رحيميه ج۱ ص۲۵۲ بحواله شامي مع درمختار ج۱ ص۶۶۱»

## په هره ترويحه کې په لاس پورته کولو دعاغوښتل

سوال: دتراويحو په هره ترويحه کې ترتسبيح لااله الاالله وروسته دامام اومقتديانو په لاس پورته کولو دعاغوښتل ياصرف دمقتديانو په لاس پورته کولو دعاغوښتل جائزدي اوکنه؟ که چيرته حافظ په ترويحه کې دعاپه دې فکرکوي چې ددې ثبوت نشته خوله ده څخه دمقتديانو فرمائش دی چې دعاهرومروغواړي داخه پروالري اوکنه؟ که حافظ دمقتديانو وينا ونه مني نومقتديان خوابدي کيږي نوپه دې صورت کې حافظ ته څه کول په کاردي؟ جواب: دتراويحو په هره يوه ترويحه کې تسبيح لااله الاالله اونوراودمأثوره دعاويل منقول دي اوپه لاس پورته کولو دعاغوښتل صرف دڅلوررکعتونو پرختميدو معمول ده نوهمداسې کول په کاردی حافظ ته په دې صورت کې دمقتديانو وينامنل ضروري نه دی اونه مقتديانوته په کاردي چې خپل امام ته داسې حکم وکړي ځکه چې امام متبوع وی نه تابع لکه چې دمشکواة دحديث مفهوم دی امام ددې لپاره وي چې په هغه پسې اقتداوکړل شي «فتاوی دارالعلوم ج۱ ص۲۷۹ بحواله مشکواة لومړی فصل ص۱۰۱» په فتاوی رحيميه کې راغلي چې دامام اومقتدي په اجتماعي اوټولنيزه ډول دعاکول ضروري ګڼل اوپردعانه کونکي نيوکه اواعتراض کول صحيح نه دي هوکه انفرادي يوازې يوازې دعاوکړي نومنع نه ده «فتاوی رحيميه ج۱ ص۳۴۷»

## په ترويحه کې نصيحت کول

سوال: په عامه توګه په مسجدونو کې د تراويح ترهرو څلورو رکعتونو وروسته تسبيح ويل کيږي خو په يوه مسجد کې ددې په خلاف په لوړخت کې وعظ او نصيحت کيږي آيا دادواړه کاره روادي او که نه؟

جواب: ترهرو څلورو رکعتونو وروسته مستحب دادي چې تسبيح، لااله الا الله، درود شريف او نوروو وايي که ضروري نصيحت کله وشي چې ورته اړتياوي نو څه پروانه نلري خو دددې التزام چې په هره ترويحه کې نصيحت هرومرو وشي دا شه نه ده لکه چې په ردالمختار کې راغلي چې په چوپه خوله دې کښيني ياد کلمه وو وايي يادتلاوت وکړي يا ددرود شريف وو وايي يا ديواځې نفلي لمونځ وکړي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۴ بحث صلاة التراويح ج ۱ ص ۶۶۱ بحواله ردالمحتار»

## په ترويحه کې دغه کلمات ويل څنګه دي

سوال: زمونږ په مسجد کې د تراويح ترپيل مخکې يو سړی په لوړآواز دا کلمات وايي: التراويح سنتة رحمکم الله لااله الا الله والله اکبر ولله الحمد ترڅو وروسته تراويح شروع کيږي ترد وه رکعته وروسته دغه تسبيح وايي: يَاکَرِيْمُ الْمَعْرُوْفُ يَاقَدِيْمُ الْاِحْسَانِ، اَحْسِنْ اِلَيْنَا رَبَّنَا بِاِحْسَانِکَ الْقَدِيْم يَااَللّٰهُ يَااَللّٰهُ يااللّٰه فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةٌ وَمَغْفِرَةٌ وَرَحْمَةٌ لَااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ترڅلورو رکعته وروسته اَلْبَدْرُ مُحَمَّدُ الْمُصطفى ﷺ لااله الا الله والله اکبر الله اکبر ولله الحمد ترويلو وروسته ياکريم المعروف الخ وايي او په دوهمه ترويحه کې خَلِيفَةُ رَسُوْلِ اللهِ بِالتَّحْقِيْق



امير المؤمنين سَيِّدُنَا اَبُوبَکْرِ الصِّدِّيْقُ ﷺ لااله الا الله الخ وايي او بيا په دريمه ترويحه کې مُزَيِّنُ الْمَسْجِدِ وَالْمُنْبَرِ وَالْمِحْرَابِ اَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ سَيِّدُنَا عُمَرَبْنُ الْخَطَّابِ ﷺ لااله الا الله الخ وايي او په څلورمه ترويحه کې جَامِعُ الْقُرْاٰنِ کَامِلُ الْحَيَاءِ وَالْاِيْمَانِ اَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ سيدنا عُثْمَانَ بْنُ عَفَّانَ ﷺ لااله الا الله الخ او په پنځمه ترويحه کې اَسَدُ اللهِ الْغَالِبُ مَظْهَرُ الْعَجَائِبِ وَالْغَرَائِبِ اِمَامَ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ اَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ سَيِّدُنَا عَلِى بْنُ اَبِى طَالِبِ ﷺ لااله الا الله الخ وايي او سُبْحَانَ الْمَلِکِ الْقُدُّوْسِ الخ هم يو سړی وايي او دا ټول اوراد په لوړآواز ويل کيږي چې له امله يې نور خلک تسبيح او نور هيڅ نشي ويلای او له وترو مخکې الوتر واجب رَحِمَکُمُ اللهُ لااله الا الله الخ وايي آيا ددغو ټولو کلماتو ويل په حديث ثابت دي او ددوی د ويلو څه حکم دی؟ جواب: دا ټولې خبرې د سنت سره اړخ نه لګوي يواځې يو رسم او رواج دی ځکه د ترک ورډي پردوو رکعتونو ترويحه نشته اماترڅلورو رکعتونو وروسته ترويحه شته او په دومره اندازه کښيناستل لمونځ کونکو ته ګران دي او په دې کې په اجتماعي او ټولنيزډول دعا او ذکر نشته يوازې يوازې چې خلک څه غواړي هغه دووايي که تلاوت کوي يا نفل کوي يا په ذکر مشغول شي يا درود شريف وايي يا چوپه خوله ناست وي ټول جائز دي ديوه شي ټول پابند ګرځول د شريعت دورکړي آزادي او خپلواکی په خلاف دي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۹۱»

پۀ ترويحه کې تسبيح بايد پۀ زوره ووېل شي او که سو که

سوال: دتراويحو ترهرو څلورو رکعتونو وروسته چې کوم تسبيحات ويل کيږي يعنی سبحان ذی الملک الخ دغه امام او مقتديان په زوروو ايي که کرار او که دامام او مقتديانو په حکم کې څه توپير شته؟
جواب: بيان شوي تسبيحات سو که ويل غوره دي په زوره ويل يې نه دي په کار امام يې بايد هم کرار ووايي او مقتديان يې هم بايد کرار ووايي لکه چې دمشکواة په حديث کې راغلي يَا اَيُّهَا النَّاس ارْبَعُوْعَلی اَنْفُسِکُمْ فَاِنَّکُمْ لَاتَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَاغَائِبًا الحديث، خلکو په خپلو ځانو له نرمي کولو څخه کار واخلئ (دعا په زوره مه غواړئ) ځکه چې تاسو کوم کوڼ يا غائب نه رابولئ «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۳ بحواله مشکواة شريف ص۲۰۱ باب ثواب اَلتسبيح فصل اول،

## پنځم باب

## تراويح له کوم وخت څخه شروع کيږي او تر کومه وخته صحيح کيږي او څه وخت روا دي؟

کوم وخت چې د رمضان مياشت وليدل شي له هماغه شپې څخه تراويح پيل کيږي کوم وخت چې داختر مياشت وليدل شي نو پرې دې بنودل شي ټوله مياشت تراويح کول سنت دي که څه هم په تراويحو کې قران کريم تر مياشت مخکې ختم کړي مثلاً په پنځلس شلو ورځو کې ټول قران کريم وويل شي نو په پاتې ورځو کې هم دتراويحو کول سنت مؤکد دي دځينو خلکو خيال وي چې ژر به په کوم مسجد کې په اته لس ورځې کې قران کريم واورو بيا به رخصت شو داپه ياد ولرئ چې دا دوه بيل بيل سنتونه دي دټول قران کريم په



تراويحو کې ويل يا اوريدل يو مستقل سنت دي او دټولې روژې دمياشتې تراويح ځان ته يو جلا سنت دي نو په ختم کولو سره يو سنت عملي شو دوهم سنت پاتې شو کومو خلکو ته چې د سفر او نورو له کبله په رمضان کې يو ځای تراويح کول مشکل وي نو هغوی ته مناسب دي چې لومړی قران کريم چې په څو ورځو کې چيرې ختميږي هلته واوري تر څو قران کريم نيمګړی نه وي بيا چې چيرې وخت پيدا کړي او موقع وي هلته دتراويح کوي په دې صورت کې به قران کريم هم نيمګړی نشي او په خپل کار کې به هم ورته حرج نه وي دتراويحو وخت دلماخستن تر لمانځه وروسته پيل کيږي او د سهار تر سپيد وږمې پورې وي که دلماخستن تر لمانځه مخکې تراويح وکړل شي نو دا په تراويحو کې نه شميرل کيږي «مظاهر حق نوی ترتيب ۱۴ او فضائل رمضان مولانا زکريا رحمه الله ص ٦،

## پۀ تراويحو کې له يوه ختم څخه کوم سنت مراد دي

سوال: په تراويحو کې يو ختم کول فقهاؤ سنت ليکلي لدې څخه مقصد کوم سنت دي مؤکد او که غير مؤکد؟ جواب: صحيح مذهب او اصح قول دا دی چې په تراويحو کې يو خل قران کريم ختمول مؤکد سنت دي دقوم دکهالت او سستی له امله دې دا نه پرېښودل کيږي او د دوه ختمونو په کولو کې فضيلت دی او درې ختمه کول افضل دي او چيرې چې فقهاؤ يو ختم سنت ليکلی دی له هغه څخه ظاهراً سنت مؤکد مراد دی ځينې فقهاؤ ليکلي که دکوم ځای خلک دومره سست زړه ماتي او ناشوقه وي چې دپوره قران د اوريدو تاب نه لري نو دومره دوايي چې مسجد و نه له خلکو خالي نشي که دا سې لويدلی حالت نه

وي نوتريوه ختم دې کم نه کوي ځکه چې همدغه سنت دی «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۴۰۲ بحواله بحرالرائق ج ۱ ص ۷۱»

## په مياشت کې يو ختم کول سنت دي

په مياشت کې يوځل په ترتيب سره دقران کريم په تراويحو کې ويل سنت مؤکد دي خود خلکو دکهالی او سستی په وجه ددې ترک نه دی په کار اماکه دا انديښنه وه چې که ټول قران کريم وويل شي نو خلک به لمانځه ته نه راځي او جماعت به مات شي يا به دوی ډېر ناخوښ وي نوغوره داده چې څومره اندازه خلکوته ګران نه تماميږي هغومره دې وويل شي اونوردله الم ترکيف څخه تر پايه لس سورتونه وويل شي « مظاهرحق جديد ترتيب ۱۴»

## له رسول الله ﷺ څخه دشلو رکعتونو ثبوت

سوال: رسول الله ﷺ دروژې مبارکې په مياشت کې څو رکعته تراويح کړي دي ؟ جواب: پرشل رکعته تراويح اجماع او په احاديثو ثابتي دي نوشل رکعته کول په کار دي رسول الله ﷺ هم شل رکعته کړې دي په مصنف ابن ابی شيبه طبراني او بيهقي کې دا احاديث موجود دي «عن ابن عباس ؓ ان النبی ﷺ يصلي فی رمضان عشرين ركعة سوی الوتر» ترجمه: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې رسول الله ﷺ له وتروپرته شل رکعته تراويح کولې «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۲ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۰ مبحث التراويح



## تراويح له نبي کريم ﷺ څخه ثابتې دی

سوال: له رسول الله ﷺ څخه دتراويحو کول ثابت دي او کنه ؟ جواب: نبی کريم ﷺ درې شپې تراويح کړې دي بيا صحابه کرامو ؓ ترده مبارک وروسته وربانديې مواظبت او هميشتوب کړی دی ځکه نوتراويح په جماعت شوې «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۳ بحث صلاة التراويح»

## تراويح په جماعت سنت دي کنه

سوال: آيا تراويح په جماعت سره په مسجد کې کول ضروري دی ؟ آيا په کورکښې يې کولای شو کنه ؟ جواب: تراويح په مسجد کې په جماعت کول سنت کفايه دي يعني که په مسجد کې دتراويحو جماعت ونه شي نو محلي والا او کليوال ګنهګاريږي او دسنت پريښودونکي هم ګرځي که ځينو په مسجد کې په جماعت اداکړې او ځينو په کورکې نو دسنت دترک ګناه وربانديې نشته خودجماعت او دمسجد له فضيلت بې برخې کيږي «فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۳۵۳ بحواله صغيری ص ۲۰۵»

## بيله شرعی عذره تراويح پريښودل څنګه دي

سوال: بيله عذره قصداً تراويح پريښودل او داويل چې رسول الله ﷺ په خپله پريښي دي ځکه يې مونږ هم پريږدو دا جائزدي او کنه ؟ جواب تراويح سنت مؤکد دی بيله عذره ددې پريښودونکی عاصی او ګنهګاردی له راشده خلفاءټولوصحابه ؓ او سلفوصالحينو څخه ددې پابندي ثابته ده رسول الله ﷺ په خپله فرمايلي دي چې زما خيال دی چې فرض نشي همدغه يوشی دي چې له وجهې يې رسول الله ﷺ

وربانديې هميشتوب نه دی کړی په حقيقت کې دده مبارک دافرمايل
په خپله ددوی دااهتمام ثرګند دليل دی ديو شخص داعذر کول چې
رسول الله ﷺ تراويح پريښي دي زه يې هم پريږدم قطعاً دقبول وړنه دی
اوپرناخبرتيابنـــاءدی «فتـــاوی دارالعلـــوم ج ۴ ص ۲۸۱ خلاصـــه
ردالمحتار مبحث التراويح ج۱ ص ۲۵۹»

## دتراويحو دپريښودونکي حکم

سوال:کوم خلک چې تراويح نه کوي دهغوی حکم څه دی ؟ جواب:
تراويح دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مؤکد سنت دي او جماعت هم په
تراويحـو کې سـنت دی ددې پريـښودونکی خطاکاراوګنهګـاردی
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۵ بحواله ردالمحتـار مبحـث التـراويح
ج۱ ص۲۲۰»

## تراويح دروژې تابع نه دي

سوال: زيد وايي چې کوم خلک دشرعي عذرله امله روژې نه نيسي
هغوی بـه تـراويح هرومرو کـوي دوی تـه ضـرور ثـواب ورکـول کيـږي
بکروايي معذورسړی چې روژه ونه نيسی هغه به تراويح هم نه کوي
بلکه څوک چې روژه ونه نيسي دهغه تراويح کول عـذاب دي پـه دوی
دواړوکې دچاوينا صحيح ده ؟ جواب:دزيد وينا صحيح ده بکرغلط
وايي دتراويحو لپاره روژه شرط نه ده «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۲
بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۲۵۹ باب النوافل مبحث فی التراويح»
تراويح دروژې تابع نه دي.کوم خلک چې په کومه وجه روژه نه نيسي
دهغوی لپاره هم تراويح کول سنت دي که يې ونه کړي نو دسنت دترک
په وجه ګنهګاريږي «مظاهرحق جديد ترتيب ۱۴»

## دتراويح کونکي اوروژه نه نيونکي حکم

سوال:څوک چې ماښام تراويح وکړي خوسهار روژه ونه نيسي دهغه
په اړه شرعي حکم څه دی ؟ جواب: که کوم عذروي مثلاً ناروغي
ياسفرنوروژه نه نيول مباح اوصحيح دي هيڅ ګناه وربانديې نشته
اوبيله عذره درمضان روژه نه نيول کبيره ګناه ده چې بدلـه يې دټول
عمرپه روژه هم نشي کيدلای «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۲ بحوالـه
ردالمحتار ج۱ ص ۲۲۱ مشکواة ص ۱۷۷»

## دوظيفې په وجه دوترو جماعت پريښودل

سوال: يوسړی دماخستن دسنتواووتروترمنځ ديوې وظيفې عـادي
دی په رمضان کې خووترپه جماعت کيږي نووظيفه څنګه ويل په
کارده که وظيفه وايي نودوولس رکعتـه تراويح څني تيريږي اواتـه
مونـدلای شـي آياأتـه رکعتـه تـراويح وکـړي دوترو پـه جماعـت کـې
شريک شي که دوترو جماعت پريږدي اوکه وظيفه دروژې په مياشت
کې پريږدي ؟ جواب:دوظيفې په وجه دوترو جماعت پريښودل نه دي
په کاراوتراويح شل رکعته کول په کاردي وظيفه که وايي نوتروترو
وروسته ياکوم بل وخت يې دې ووايي لنډه داچې دوظيفې لـه امله
کوم واجب اوسنت نـه پريـښودل کيـږي بلکـه وظيفـه بايـد پريږدي
يادوخـت وربـدل کـړي «فتـاوی دارالعلـوم ج ۴ ص ۲۸۲ بحوالـه
ردالمحتار ص ۲۲۰»

## دتراويحو پروخت که خوب غالبه وی نو...

سوال:که دتراويحو پروخت خوب غالب وی پرمخ داوبوا چولوسره
سره خوب ورځي نودلمانځه په پريښودلو کورته تلای شي اوکنه ؟

جواب: هو تللای شي په دې کې څه حرج نشته د خوب د غلبې پرمهال لمونځ کول مکروه او منعه دي د خوب ترپوره کيدو وروسته دې پاتې تراويح د سهار ترسپيدو مخکې وکړي «فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۲۵۵ بحواله صغيري ص ۲۱۱»

او د عالمګيري په ترجمه کې دي چې که د خوب غلبه وه نو په جماعت سره تراويح کول مکروه دي بلکه جلا په ښه بيداری يې دې وکړي ځکه چې له خوب سره په لمونځ کولو کې سستی او غفلت راځي او په قران کې غور او فکر کول ورځينې پاتيږي «ترجمه هنديه فتاوی عالمګيري ج ۱ ص ۱۹۰ کتاب الصلاة»

## مقتدی که په ناسته کې ويده شي نو څه حکم لري

يو سړی تراويح له امام سره پيل کړي کله چې امام صاحب قعده وکړه نو دی ويده شو په دغه وخت کې امام صاحب سلام وګرځاوه دوه رکعته يې نور و کړل او د التحيات لپاره کيناستی نو دغه وخت دا سړی راويښ شو که ده ته دا معلومه شوه چې امام دوه رکعته نور کړي دي نو سلام دې وګرځوي او بيا دنيت وتړي له امام سره دې په تشهد کې برخه واخلي کله چې امام سلام وګرځوي نو ولاړ دې شي دوه رکعته دژر وکړي چې سلام وګرځوي بيا دې له امام سره په دريم دوه رکعتيز کې شريک شي «ترجمه هنديه فتاوی عالمګيري ج ۱ ص ۱۹۰ کتاب الصلاة»

## په تحريمه کې د مقتدي غلطي

خينې مقتديان کله نا کله داسې غلطي هم کوي چې په هغه سره لمونځ ...يږي مثلاً د امام تر تکبير تحريمه يعنی الله اکبر ويلو مخکې



مقتدی الله اکبر وايي يا د امام د الله له لفظ ختمولو مخکې دی د الله لفظ ختم کړي په دې دواړو صورتونو کې د لمانځه شروع صحيح نه شوه دغه مقتديانو ته په کار دي چې دوی دې دوهم ځل بيا الله اکبر و وايي په امام پسې دې نيت وتړي «مسائل سجده سهوه ص ۷۴ بحواله صغيري ص ۱۴۳»

زياتره مقتديان ليدل کيږی چې کله امام رکوع ته ولاړ شي نو له هغه سره په رکوع کې د شريکيدو لپاره له نيغ او سيده دريدو پرته الله اکبر وايي رکوع ته ځي چې په دې ډول د دوی د الله اکبر او از رکوع ته په رسيدو پای ته رسيږي دا رنګه په لمانځه کې برخه اخيستل صحيح نه دي له تکبير تحريمه څخه تر فارغيدو ولاړه فرض ده يعنی چې په سيده ولاړه کې د الله اکبر او از ختم شی تردې وروسته رکوع ته ټيټيدل په کار دي که دولاړې پرمهال تکبير تحريمه ختم نه شي نو دده په لمانځه کې شامليدل صحيح نه دي «کفايت المفتی ج ۳ ص ۳۹۱»

## دتراويحو نيت

دتراويحو دلمانځه د نيت هماغه طريقه ده کومه چې د نورو لمونځونو ده او د دې نيت په دې طريقه دی چې زه دې دوه رکعته تراويحو نيت کوم کوم چې د رسول الله ﷺ سنت دي الله اکبر و وايا ست نيت وتړئ «مظاهر حق جديد ترتيب ۱۴»

## دتکبير تحريمه پرمهال د لاسونو نيولو طريقه

سوال: د تکبير تحريمه په وخت کې دواړه لاسونه تر غوږو پورته کړي بيا سملاسي لاسونه وتړي او که يو وار لاسونه پريږدي بيا يې وتړي صحيح کومه طريقه ده؟ جواب: تر تکبير تحريمه وروسته او په

وتروکې ترقنوت مخکې دغه رنګه داختر دلمانځه په لومړي رکعت
کې له دریم تکبیرسره دې لاسونه پورته کړي بیا یې دوتړي
دلاسونو ایله کولو او بیاتړلو طریقه ثابته نه ده «فتاوی رحیمیه ج ۳
ص ۳۷»

## بیله ثناء قرائت پیل کول

سوال: علماء ددین او مفتیان دشرعې متین په لاندې مسئله کې چې
حافظ صاحب په رمضان المبارک کې په تراویحو کې
ترتکبیرتحریمه سمدستي وروسته بیله ثناء ویلو سورة فاتحه شروع
کړي څه فرمایي؟ جواب: دثناء نه ویلو عادت جوړول خو یو ناوړه
حرکت دی خو په لمانځه کوم کراهیت نه راځي ځکه چې دثناء ویل
صرف مستحب دي او دمستحب په ترک په لمانځه کې کوم قباحت نه
راځي «فقط والله اعلم لیکونکی نظام‌الدین ددارالعلوم دیوبند مفتی
۲۲/۱۲/۱۴۰۲ هج

## په تراویحو کې دشلو رکعتونو په یوځل نیت کول

سوال: دتراویحو دشلو رکعتونو لپاره په شروع کې په یوځل نیت کول
کفایت کوي که به له هردوه رکعتونو سره جلا نیت کوي؟ جواب:
دتراویحو لپاره په پیل کې دشلو رکعتونو نیت کول کفایت کوي
پرهردوه رکعته نیت کول شرط نه دي مګر غوره دي «فتاوی رحیمیه
ج ۱ ص ۳۵۴»

## دوه دوه رکعته تراویح کول

سوال: تراویح دوه دوه رکعته کول په کار دي که ثلور ثلور؟ جواب:
په تراویحو کې پردوه دوه رکعته سلام ګرځول بهتر دي تراویح که څه



هم سنت مؤکد دي خو ثلور رکعته په یوه سلام کول سنت مؤکد نه دي
ددې په خلاف دلماسپښین سنت ثلور رکعته په یوه سلام کول سنت
موکد دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۷ بحواله ردالمحتار مبحث
التراویح ص ۶۶۰»

## په تراویحو کې دسنت قرائت اندازه

سوال: دروژې په لومړۍ شپه حافظ تراویح ورکولو ته چمتو شو یوه
مقتدي انکار وکړ چې مونږ قران کریم نه اورو امام او نورو مقتدیانو
ورته وویل چې که یې ته نه اورې نو مونږ خو یې اورو دا شخص په
داسې حال کې چې په تن روغ او توان لرونکی دی بیا هم ټینګار کوي
چې په لنډو سورتونو باید تراویح وکړو په دې صورت کې شرعاً څه
حکم دی؟ جواب: فقهاؤ لیکلي چې افضل په دې زمانه کې دومره
قران ویل په کار دي چې مقتدیانو ته دتراویح کول ګران نه شي نو ددې
شخص وینا هم پرهمدغه محمول ده چې دمقتدیانو نه حال سره سم
تراویح کول په کار دي دده مطلب له قران څخه انکار نه بلکه دده
مطلب دا دی چې په تراویحو کې قران کریم مه ختموئ بلکه په
لنډو سورتونو تراویح وکړئ په دې کې کوم قباحت نشته «فتاوی
دارالعلوم خ ۴ ص ۲۲۱ بحواله ردالمحتار باب الوتر والنوافل مبحث
التراویح ج ۱ ص ۶۶۲»

## آیا په تراویحو کې اوږده سورتونه ویل په کار دي که لنډ

سوال: په تراویحو کې ټول قران کریم افضل دی که له سورت فیل
څخه ویل غوره دي؟ ځواب: ددرالمختار مبحث التراویح لومړی
ټوک ص ۶۶۲ لنډیز داسې دی چې یوځل په تراویحو کې دقران کریم

ختم سنت دی اودقوم دسستی له امله دامه پریږدئ پرهمدې عمل دی اوهمدغه معمول دی «امدادالفتاوی ج۱ ص ۳۰۰»

## په تراویحو کې دشلو رکعتونو عقیده لرونکي کمبوداوزیادت

سوال: که کوم شخص دشلو رکعتونو تراویحو دسنت والي اعتقادلري خو کله یوولس کله دَیارلس اوکله دیوځلویښت رکعتونو نیت کوي نوآیا ګنهګاریږي ؟ جواب: شل رکعته تراویح کول سنت مؤکددي ددې په خلاف کونکی داحنافو په نزددسنتو پریښودونکی دی اودسنت په خلاف کول بد دي ؟ که څه هم بیان شوې شمیره په احادیثو کې راغلې خوداحنافو په نزدپرټولو احادیثو په پوره بصیرت سره له غورکولووروسته همدغه شل رکعته راجح بلل شوي اودحضرت عمرفاروق ﷺ له تحریک څخه پرهمدې دصحابه کرامو اجماع شوې ده «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۲۹۷ بحواله ردالمحتارج۱ ص ۶۶

## په تراویحواونورولمونځوکې امام باید قرائت په څومره اندازه په زوره ووایي

سوال: په تراویحواونوروجهري لمونځونو کې امام باید په څومره اندازه په زوره قرائت ووایي؟ جواب: افضل اوغوره داده چې امام په جهري لمونځوکې بیله تکلیفه دومره په زوره ووایي چې مقتدیان قرائت اوریدلای شی له دې څخه زیات په تکلف ویل مکروه اومنعه دي لکه چې الله ﷻ فرمایي: ولاتجهربصلاتک الایة اوته په زوره



والی مه کوه په لمانځه خپل کې اومه سو کوالی کوه اوخوښه کړه دمینځ لاره.

مفسرین فرمایی چې په لمانځه کې په درمیانه اواز قرائت کول په کاردي له دې څخه پرزړه اغیزکیږی نه یې ددومره په زوره وایی چې قاری اوسامع دواړه تکلیف وي چې په دې سره دړزه په حضور کې خلل راشي «خلاصة التفاسیر ج ۳ ص ۲۷ تفسیرفتح المنان ج ۵ ص ۹۶» فقهاء کرام په زوره ویلو کې دوې خبرې ضروري بولي لومړی داچې ویونکی پرخپل ځان دعادت په خلاف زوررانه ولي داسې کول مکروه دي دوهم داچې نوروته تکلیف نه وي مثلاً دتهجد پروخت څوک ویده دي یاڅه خلک په خپل کاربوخت دي تاسوله هغوی سره نژدې ودریږئ په دومره لوړاواز قرائت پیل کړئ چې دهغوی په کارکې خلل راشي نوداهم مکروه دی تردغودوه خبروورووسته دریمه خبره داده چې دجماعت دکمښت اوزیاتوب په لحاظ ساتلو سره قرائت وویل شي مثلاً دمقتدیانو درې صفه وي تاسو په دومره لوړاوازووایاست چې تردریم صف پورې اوازورسیږی یایې تردې په زوره ووایاست چې تربهره آوازورسي دفقیه ابوجعفر رحمة الله علیه قول داسې دی چې څومره په لوړاوازوویل شي بهتره دی خو په دې شرط چې ویونکي ته به ستړیانه وي اوڅوک په تکلیف نشي خودنوروفقهاؤداوینا ده اوراجح هم همدغه ده چې داړتیاپه اندازه دې آوازاوچت کړي یعني صرف دومره دې اوازلوړکړي چې تردریم صف پورې ورسیږي اماکه صفونه زیات وي نو تردې یې هم لوړولای شي په دې شرط چې پرځان زیات زوررانه ولي «فتاوی رحیمیه ج۱

ص ۳۵۱ بحواله طحطاوي على مراقى الفلاح ص ۱۳۷ فصل في واجب الصلاة درمختار ص ۴۹۷ مجمع الانهر ص ۱۰۳ ج ۱ عالمگیري ج۱ ص ۷۲»

## یوازې په تراویحو کې قرائت څنګه ووایي

سوال: نارینه تراویح په جماعت سره وکړي که جلا جلا؟ که یوازې یې وکړي نو قرائت به په لوړ اواز وایي او که په ټیټ؟ جواب: نارینه دې په جماعت سره تراویح کوي که له کوم ځا ځخه جماعت تیر شي او یوازې تراویح کوي نو که یې سو که وایي او که په زوره دواړه صورتونه جائز دي خو په زوره ویل اولی او غوره دي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۹ بحواله ردمحتار ج۱ ص ۵۵۲ باب التراويح»

## آیا تراویح دارنګه هم کیدای شي

سوال: تراویح دارنګه کول مثلاً په لومړي رکعت کې سورة التکاثر او په دوهم رکعت کې سورة اخلاص یا په اول کې سورة العصر او په دوهم کې سورة اخلاص څنګه دي؟ جواب: تراویح دارنګه هم صحیح کیږي خو دا لازم بلل او ډیره پابندي کول نه دي په کار بلکي په ترتیب سره د سورتونو ویل په کار دي «فتاوى دارالعل[illegible]
ج ۴ ص ۲۵۱

داسې [illegible]



## لومړی وتر کول په کار دي که تراویح

سوال: تراویح تر وتر وله مخه کول په کار دي که وروسته؟ یو سړی لومړی وتر کوي وروسته تراویح کوي شرعي حکم څه دی؟ جواب: په تراویحو کې مشروع طریقه داده چې دلماخستن تر لمانځه وروسته اوله وتر و مخکې لومړی تراویح وکړي او تر هغه وروسته بیا وتر وکړي خو که تراویح تر وترو وروسته وکړي دا هم صحیح دی له درمختار څخه همداسې معلومیږي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۴ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۷۵۹»

## دوه رکعته سنت مخکې کول په کار دي که تراویح

سوال: چې کله په روژه مبارکه کښې تراویح پیل شي نو تر فرضو وروسته چې کوم دوه سنتونه دي هغه باید وکړي بیا په تراویحو کې برخه واخلي او که له تراویحو وروسته سنت اداکړي؟ جواب: تر فرض او سنتو کولو وروسته باید په تراویحو کې شریک شي په فتاوى شامي کې راغلي دي وقتها بعد صلاة العشاء یعني د تراویحو وخت د ماخستن تر لمانځه وروسته دی «فتاوى دارالعلوم ج۴ ص ۳۰۰ بحواله شامي ج۱ ص ۷۵۹»

## [illegible] خلکو چې فرض تیر شي نو جماعت باید وکړي او که څنګه

[illegible] خو کسان د فرض لمانځه له کیدو وروسته راشي جمع شوې [illegible]راویح شروع دي نو را تلونکی کسان باید فرض په جماعت وکړي [illegible] که یوازې یوازې فرض اداکړي بیا په تراویحو کې شریک شي؟ همدارازو ت[illegible]ماعت وکړي او که یوازې؟ جواب: دا خلک د جلا جلا

فرض لمونځ وکړي دامام سره دې دتراویحو په جماعت کې شریک شي اوو ترديږ له امام سره په جماعت اداکړي که څه هم دوی فرض لمونځ په جماعت ونه موندی په درمختارکې داسې راغلي چې فرض یوازې کونکی تراویح په جماعت سره کولای شي ځکه چې ددواړو حکم برابردی لکه چې تراویح په جماعت سره نه کونکی وترپه جماعت سره کولای شي همدارنګه فرض یوازې کونکی هم وترپه جماعت سره کولای شي «امدادالفتاوی ج۱ ص ۳۴۸ بحاشیه استاذی حضرت مولانامفتی سعیداحمدصاحب پالنپوري»

## دتراویحوتیرشوي رکعتونه کله راګرځول په کاردي

سوال: یوسړی مسجدته هغه وخت داخل شو کله چې دلماخوستن فرض شوي وودی په تراویحو کې تردوویاڅلوررکعتونو وروسته شریک شواوس تیرې شوې تراویح څرنګه راوګرځوي ؟آیاوترپه جماعت سره اداکړي اوکه ترتیروشویوتراویحوروسته وتروکړي ؟
ځواب که په مینځ کې یې موقع وموندله نودامام دترویحې په وخت کې دې تیرشوي رکعتونه راوګرځوي اوکنه نوچې کله وترپه جماعت سره اداکړي ترهغه وروسته دې تیرې شوې تراویح راوګرزوي په درمختارکې راغلي چې دتراویحووخت دلماخستن ترلمانځه وروسته اودسهارترسپیدوپورې دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۰ بحواله ردالمحتارمبحث التراویح ج۱ ص ۶۵۹»
اووترمخکې اووروسته دواړه رنګه کولای شي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص: ۲۲۰ بحواله ردالمحتار مبحث التراویح»



## په تراویحوکې پاته شوي ایتونه به چیرې راګرزوي

سوال: زمونږ په مسجدونوکې حافظان په عامه توګه له مسائلوناخبروي هغوی په تراویحوکې قران کریم وایي اودسهوې په وجه په مینځ کې دوه درې آیتونه ورځینې پاته شي یازبر، زیراوپیښ ځینې غلط شی نوپه دوهم رکعت کې دغه پاته شوي آیتونه بیاوایي خوپه کومه دوه رکعتیزکې چې ایاتونه ورځینې پاتې شوي وي هغه نه راګرځوي دپوښتنې وړخبره داده چې دآیت په پاتیدودمعنی په سبب لمونځ فاسدیږي نودلمانځه راګرزول ضروري دي اوکنه ؟ که دمعنی په بدلون دنه خبریدوله امله راګرزول ضروري نه دي ؟ جواب: که دقرائت غلطي په کوم دوه رکعتیزکې پرداسې موقع راغله چې دلمانځه فاسدولوباعث وي نوددغودوورکعتوراګرزول ضروري دي اوکه داسې غلطي وه چې لمونځ فاسدونکي نه وه نودلمانځه راګرزولوته اړتیانشته بلکه لمونځ صحیح کیږي په مینځ کې دآیتونوپه پاتیدویادزبر، زیراوپیښ په غلطي کولوکې هم همدغه حکم دی مثلاً دڅوآیتونوپه مینځ کې دپاتیدوپه وجه دمعنی بدلون رانغلی نولمونځ صحیح شوصرف دقران ختمولولپاره په نورودوه رکعتیزوکې ددغوآیتونوراګرزونه کفایت کوي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۸ دعالمګیري مصری ج۱ ص ۱۰۱ په حواله»

## پاته شوی آیتونه په راتلونکي ورځ ویل څنګه دي

سوال: په تراویحوکې سهواً له حافظ صاحب څخه دځینوآیتونوپاتیدل اودوهمه یادریمه ورځ دغه ایتونه په متفرق ډول یوپه بل پسې ویل جائزدي اوکنه ؟ اودپوره ختم ثواب به سره له

کراهیته وي که بې له کراهیته ؟ جواب :صرف دقران دختم لپاره که په
نورودوه رکعتیزو کې دغه دوه آیتونه راوګرزول شي نو کافي دي
دپوره ختم ثواب ورکول کیږي او کله چې په هیره داسې وشول نو په
دې کې هیڅ ګناه نشته «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۴ دعالمګیري
مصري ج ۱ ص ۱۰۱ په حواله»

## له تراویحو سره تړلې یوځای دیرش مسئلې

۱ دتراویحو جماعت دلماخوستن دجماعت تابع دی ځکه
نودلماخستن ترلمانځه مخکې جائزنه دي او په کوم مسجد کې چې
دلماخستن لمونځ نه وي شوی هلته تراویح هم په جماعت سره کول
صحیح نه دي «کبیري ص ۳۹۱»

۲ مسئله :یوه سړي دامام یامقتدي په حیث تراویح وکړې اوس په
همدغه شپه دده لپاره دامام په حیث تراویح کول صحیح نه دي خو که
په بل مسجد کې دتراویحو جماعت کیدی نو هلته دنفلو په نیت
شریکیدل بیله کراهیته جائزدي «کبیري ص ۳۸۹»

۳ دوه رکعته په یوه سلام کول افضل دي او څلورهم څه پروانلري اته
رکعته هم په یوه سلام مکروه نه دي «خوپرهره ترویحه به دا ستراحت
دجلسې فضیلت نشي حاصل» البته تردې زیات خلاف اولی او مکروه
دی «کبیري»

۴ مسئله :یو سړی مسجد ته داسې وخت راورسید چې جماعت شروع
شوی وو نوده ته په کاردي چې لومړی فرض او سنتونه وکړي تردې
وروسته په تراویحو کې برخه واخلي او پاتې شوې تراویح دې
دووترویحو په مینځ کې پوره کوي که موقع نه وه نو تروترو وروسته



یې دې وکړي داسې دې نه کوي چې دوترویاتراویحو جماعت
پرېږدي یوازې یې کوي «کبیري»

۵ مسئله: په یوه امام پسې فرض په بل پسې تراویح اووترکول هم
جائزدي ۶ مسئلة: که وروسته معلومه شوه چې په کومه وجه
دلماخستن لمونځ نه شوصحیح مثلاً دامام اودس نه وویاکوم رکن
ځینې پاتې شونو له فرضو سره دتراویحو راګرځول هم په کاردي که
څه هم ذلته هغه وجه موجوده نه وي «کبیري»

۷ مسئله :درمضان دشپې دقیام یاتراویحو ،یادوخت دسنتو یاداامام
دلمانځه په نیت تراویح اداکیږي «خانیه»

۸ مسئله: که امام دوهمه یادریمه شفعه (دوه رکعته ) کوي او کوم
مقتدی په ده پسې دلومړي شفعې نیت وکړي نوپه دې کې څه حرج
نشته «خانیه»

۹ مسئله: که چیرې ورپه یادشوه چې تیره شپه دتراویحو کوم دوه
رکعته پاتې شوي یافاسدشوي نو دهغه په جماعت سره دتراویحو په
نیت راګرزول مکروه دي ۱۰ مسئله: که چیرې تروترو کولو وروسته
ورپه یادشوه چې دوه رکعته پاتې شول نو هغه هم په جماعت سره کول
په کاردي ۱۱ مسئله: که وروسته ورپه یادشول چې یوکرت یو رکعت
شوی شفعه نه ده پوره شوې یعنی تراویح ۱۹ رکعته شوې نودوه
رکعته دې نورو کړي یعنی یوازې فاسده شفعه دې راوګرزوي ترهغه
وروسته ټولې تراویح نه راګرزول کیږي ۱۲ مسئله: کله چې
فاسدشفعه راګرزول کیږي نوپه هغه کې چې څومره قران کریم ویل
شوی وي دې هغه هم راګرزول په کاردي ترڅوټول قران په لمانځه کې

ختم شي ۱۳ مسئله: که تراتلس رکعته کولو وروسته ورپه یادشول
چې دتراویحو دوه رکعته پاته دي نودوترو پردوهم رکعت یې سلام
وګرزولو نودغه دوه رکعته په تراویحو کې نه شمیرل کیږي
۱۴ مسئله: که امام پردوه رکعته ناسته نه بلکه پرڅلورر کعته وکړه
نوداآخرني دوه رکعته شمیرل کیږي ۱۵ مسئله: بیله عذره په ناسته
تراویح اداکیږي اما ثواب نیم ورکول کیږي ۱۶ مسئله: که امام دکوم
عذرپه وجه په ناسته تراویح ورکوي بیاهم مقتدیانوته په ولاړه کول
مستحب دي ۱۷ مسئله: تراویح شمیرل مکروه دي ځکه چې
دادناشوقی نښه ده ۱۸ مسئله: مستحب داده چې دشپې زیاتره برخه
په تراویحو کې تیره شي ۱۹ مسئله: یوځل قران کریم ختمول (په
ویلویااوریدلو) سنت دی دوهم ځل فضیلت دی اودریم ځلې افضل
دی ځکه نو که په هر رکعت کې نژدې لس آیتونه وویل شي نو یو ځل په
هوسایي ختمیږي او مقتدیانو ته به هم مشکل نه وي ۲۰ مسئله: کوم
خلک چې حافظان دي دهغوی لپاره فضیلت دادی چې کله له
مسجد څخه راشي نوشل رکعته نورو کړي ترڅو ددوه ځله
ختمولو ثواب ورته حاصل شي ۲۱ مسئله: په هره عشره (لسیزه) کې
یو ختم کول افضل دي ۲۲ مسئله: که چیرې مقتدیان دومره ضعیف
او کهاله وي چې یو ځل هم ټول قران نشي اوریدلی بلکه ددې په وجه
جماعت پریږدي نو په څومره اوریدو چې دوی راضی وي هغومره دې
وویل شي یادې په الم ترکیف سره تراویح وکړای شي خو په دې
صورت کې دختم دسنت له ثوابه بې برخې کیږي ۲۳ مسئله: که کوم
آیت پاته شواومخته ترڅه برخې ویلو وروسته ورپه یادشو چې فلانی



آیت پاته شوی دی نوددې ترویلو وروسته پرمخ ویل شوې برخې
راګرزول هم مستحب دي ۲۴ مسئله: په کوم پاته شوی سورت
ددوورکعتونو په مینځ کې فصل کول په فرضو کې مکروه دي په
تراویحو کې مکروه نه دي ۲۵ مسئله: که مقتدیان ضعیف او کهاله
وي چې داوږده لمانځه زغم نه لري نو پردوه دوه
رکعتونو ددعا پرېښودل پروانه لري خو درود پرېښودل نه دي په کار
۲۶ مسئله: یو سړی داسې وخت په جماعت کې شریک شو چې امام
قرائت پیل کړی وو نو ثنا (سبحانک اللهم) ویل نه دي په کار
۲۷ مسئله: مسبوق دې دخپل لمانځه یوازې پوره کولو لپاره ترهغه نه
ولاړیږي ترڅو چې دامام دلمانځه دختمولو یقین نه شي «محیط»
ځکه چې کله ناکله امام دسجده سهوې لپاره سلام ګرزوي
او دمسبوق داخیال شي چې دلمانځه ختمیدو سلام دی نو دخپل
لمانځه پوره کولو لپاره ولاړشی په داسې صورت کې سمدستي له
امام سره بیرته شریکیدل په کار دي ۲۸ مسئله: که چیرې یو سړی
داسې وخت راغلی چې امام په رکوع کې ؤده سمدستي
تکبیر تحریمه وویله په رکوع کې شریک شو خو امام له رکوع
سرراپورته کړ نو که په سیده ولاړه ده تکبیر تحریمه ویلې وه رکوع ته
تللی وو او رکوع ته ترټیټید وله مخه یې الله اکبر ویلی وو او ملا یې په
رکوع کې برابره کړې وه تر دې وروسته امام له رکوع سرراپورته
کړنو بیاخو ده رکعت وموندی که څه هم یوځل یې تسبیحات نه وي
ویلي او که دامام ترسرراپورته کولو مخکې یې په رکوع کې ملا نه وه
برابره کړې نو رکعت یې نه دی موندلی او که په سیده ولاړه کښې یې

تکبيرنه وي ختم کړی بلکه دټيټيدو پروخت يې ووايي او په رکوع
کښې يې پوره کړي نو دا شروع کول هم نه صحيح کيږي (محيط )
۲۹ مسئله: که څيرې په رکوع کې له امام سره شريک شو او صرف
يو تکبيريې ووايه بيا هم لمونځ صحيح شو که څه هم له دې تکبير څخه
يې د رکوع د تکبير نيت کړی وي د تکبير تحريمه نيت يې نه وي کړی
دغه نيت اعتبار نشته په دې شرط چې تکبيريې په ولاړه ويلی وي
په رکوع کې يې نه وي ويلای ۳۰ مسئله: په يوه امام پسې فرض او په
بل پسې تراويح او وترکول هم جائزدي «کبيري» مأخوذ از فتاوی
محموديه مجموعة فتاوی استاذي مولانا مفتی محمود حسن
ګنګوهی ج۲ ص ۳۵۰ تر ۳۵۷»

## شپږم باب

## دبسم الله په بيان کې

### آيا په تراويحو کې په زوره بسم الله ويل ثابت دي

سوال: آيا له عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه داسې کوم روايت شته چې
بسم الله له هر سورت سره نازله شوي ځکه نو احتياطاً په تراويحو کې
بايد په جهر سره وويله شي ؟ که څيرې بسم الله په زوره ونه وايي
آيا ګنهګاريږي که څنګه ؟ جواب: په زياتره رواياتو کې راغلي چې
رسول الله ﷺ به قرائت له الحمد لله څخه شروع کاوه له دې څخه
څرګنديږي چې بسم الله به يې په زوره نه ويله چې همدا د ابو حنيفه
رحمه الله مذهب دی نو له هر سورت سره په تراويحو کې د بسم الله
جهر کول نه دي په کار په ټول قران کريم کې دې د کوم سورت سره



يو ځل په زوره وويل شي (فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۸ بحواله
درمختار ۱ ص ۴۵۷ باب صفة الصلاة )

### دبسم الله په زوره ويل په تراويحو کې څنګه دي

سوال: په پيښور او نورو ولسواليو کې په ټول قران کريم کې له يوه
سورت سره هم بسم الله الرحمن الرحيم په تراويحو کې په زوره نه
وايي دوی وايي چې له رسول الله ﷺ څخه ددې ثبوت نشته او په زوره
ويلو سره بسم الله د قران شريف جز کيدل نه لازميږي ؟ حال دا دی چې
دهندوستان علماء يو ځل جهر کوي او مولانا عبدالحی رحمة الله عليه
په فتاوی کې يو ځل په جهر ويل مسنون ليکلي ددې د جهر څه وجه ده
؟ جواب: دبسم الله الرحمن الرحيم يو ځل په زوره ويل ځکه ضروري دي
چې دا د ټول قران کريم جزء ده په يو ځای کې هم په جهر نه
کولو د سامعينو قران اوريدل نه پوره کيږي همدغه وجه
د جهر معلوميږي کنه ظاهراً د قران جزئيت و جهرته لازم نه دی
مګر چونکه د ټول قران شريف ختم په تراويحو کې مسنون دی ځکه
دبسم الله يو ځل په زوره ويلو ته سنت ويل شوي «فتاوی دارالعلوم ج
۴ ص ۲۲۳ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۴۵۸ باب صفة الصلاة»

### دقرائت دامامانو پيروي په تلاوت کې ده په لمانځه کې نه ده

سوال: يو مولوي صاحب چې حافظ د قران او قاري هم دی هغه په
تراويحو کې تر سورت فاتحه وروسته له هر يو سورت مخکې بسم الله
په زوره وايي دی وايي چې په دې کې نه کوم قباحت شته نه کراهيت
دپه زوره ويلو په ثبوت کې دا فرمايي چې په تراويحو کې لکه څنګه
چې د قران پوره کول د قرائت او ويلو په اعتبار مقصد او سنت مؤکد دی

همدارنګه دقران بشپړول داوریدو په اعتبار دمقتدیانو په هکله هم مقصدی ځکه نوترڅو چې په تراویحو کې دهرسورت مخته بسم الله ونه ویل شي دمقتدیانو په هکله اختلاف نه ایسته کیږي او اختلاف هم دائمه مجتهدینو نه بلکه دقرائت دامامانو دی نوترفاتحه وروسته دهرسورت مخته په تراویحو کې بسم الله په زوره ویل څنګه دي؟ اوداحنافو لپاره بسم الله دخپلو مجتهدینو په اتباع سو که ویل په کاردي او که دقرائت دامامانو په اتباع په زوره ویل په کاردي؟ جواب له درمختار باب صفة الصلاة ج۱ ص ۴۵۷ څخه معلومیږی چې په لمانځه کې داحنافو په نزد په اتفاق سره بسم الله سو که ویل په کاردي په دې کښې داحنافو په نزد هیڅا اختلاف نشته او مطلقاً هرلمانځه ته شامله ده که فرض لمونځ وي که نفل که تراویح او نور له دې عبارته داهم څرګندیږي چې دقرائت دامامانو اتباع په تلاوت کې ده په لمانځه کې نه ده پرهمدې مونږ خپل استاذان او داحنافو علماء لیدلي دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۵»

## له سورة اخلاص سره بسم الله ویل

بسم الله دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد دقران کریم یو آیت ده دکوم سورت جزء نه ده دایو ځل که هرڅای وي ویې دې وایي دقل هو الله ځانګړتیا نشته چیرې چې وغواړئ ویې وایاست لکن داعقیده ساتل چې له قل هو الله پرته له کوم بل سورت سره صحیح نه ده بدعت ګرځي کنه هیڅ پروانه لري «فتاوی رشیدیه کامل ص ۲۶۵»



## دبسم الله په اړه دمولانا تهانوي رحمة الله علیه فتوی

سوال: په تراویحو کې چې حافظ صاحب قران کریم اوروي نودی به له هرسورت سره بسم الله په زوره وایی که به یې په کوم یوڅای کې وایي؟ جواب: دسورتونو په مینځ کې کیدو په وجه دبسم الله جزئیت والی خونه لازمیږي خودمذهب په کتابونو کې څرګندونه شته چې بسم الله دمطلق قران جزء ده دکوم سورت یاهرسورت جزء نه ده نوددې تقاضاداده چې یوڅای هرومرو په زوره وویل شي کنه دمقتدیانو قران به بشپړنه شي دقاري اخفاء په بسم الله کې هم کیږي ځکه چې دځینو اجزاؤ دجهراودځینو سو که ویل جائزدي دقرائت له فن سره خودامسئله صرف دومره تړون لري وروسته له فقهي سره اړینه ده او په هغه کې دبسم الله اخفاء ده «امدادالفتاوی ج۱ ص ۴۹۵

## په تراویحو کې ترهرسورت مخکې بسم الله ویونکی حنفي دخپل مذهب خلاف کوي

په فتاوی رحیمیه کې دبسم الله په اړه څرګندونه ده چې له لمانځه دباندې دقران په تلاوت کې دقرائت دامام دمسلک پیروي کیږي او په لمانځه کې دامام اعظم رحمة الله علیه دمسلک اتباع کیږي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۸۵»

له تکبیرتحریمه څخه ترسلام ګرزولو پورې لمونځ دې دامام اعظم رحمة الله علیه له مسلک سره سم وشي او که په بسم الله کې مخالفت وشي دابه مناسب نه وي.

## د بسم الله په اړه د امام اعظم رحمه الله مسلک

پردي ټول اهل اسلام اتفاق دي چې په قران کې بسم الله الرحمن الرحيم د سورة نمل جزده او په دې هم اتفاق دی چې له سورة توبه پرته د هر سورت په پيل کې بسم الله ليکل کيږي خو په دې کې د مجتهدينو امامانو اختلاف دی چې بسم الله د سورة فاتحه يا ټول سورتونو جزء ده او که نه؟ د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله مذهب دا دی چې له سورة نمل پرته بسم الله د کوم بل سورة جزء نه ده بلکه ځان ته يو آيت دی کوم چې د هر سورت په شروع کې د دوو سورتونو ترمينځ د جلاوالي او امتياز څرګندولو لپاره نازله شوې ده دې احترام او درناوی د قران کريم په رنګه واجب دی دې ته په نبې او د سه لاس وروړل جائز نه دي «معارف القران ج۱ ص ۱۲»

مسئله: په لمانځه کې تر سورت فاتحه وروسته له سورت پيل کولو څخه مخکې بسم الله ويل نه دي په کار که جهري لمونځ وي او که سري ځکه له رسول الله او له راشده خلفاؤ څخه ثابته نه ده «معارف القران ج۱ ص۲۰ بحواله شرح منيه»

### د خبرې لنډيز

له رواياتو معلوميږي چې بسم الله د قران کريم جزء ده د هر سورت جزء نه ده ځکه په تراويحو کې يو ځل په زوره ويل او د هغه اوريدل ضروري دي او که په زوره بسم الله ونه ويل شي نو ديوه ايت کمی راځي اوس دا خبره چې بسم الله په کوم ځای او کوم سورة کې وو ايو نو په دې کښې اختيار دی چيرې چې مو خوښه وي ويې وايا ست ځينې حافظان د قران د ختم په ورځ بسم الله په ځانګړې توګه له سورة اخلاص سره



وايي د بسم الله ويل خو به صحيح شي خو د کوم خاص سورة التزام مه کوئ تر څو مقتديان دا (بسم الله) د دې سورة جزء ونه ګڼي غوره دا ده چې کله له يوه سورة سره کله له بل سورة سره وويل شي دا حقر رايه داده چې په لومړي ورځ د قران په شروع کې د سورة بقره په پيل کې وويل شي تر څو په هغه حديث هم عمل وشي چې هر کار له بسم الله څخه شروع کوي خو دا هم ضروري مه بولئ اختيار دئ چيرې چې غواړئ هلته يې ويلای شئ په لمانځه کې خو د بسم الله په اړه د امام اعظم رحمه الله پيروي په کار ده او له لمانځه څخه بهر کله چې د قران تلاوت کيږي نو په دې کې د قرائت د امامانو اتباع وي يعني د هر سورة په سر کې دې په زوره وويله شي «مرتب محمد رفعت قاسمی»

## اووم باب

## سجده سهوه

### د سجده سهوې اصول

### سجده سهوه په لاندنيو وجهو واجبيږي

۱ د لمانځه له واجباتو څخه کوم واجب په هيره پريښودل
۲ د کوم واجب له خپله ځايه ځنډول ۳ ديوه رکن په اندازه کوم واجب ځنډول ۴ يو واجب دوه ځله کول ۵ کوم واجب بدلول لکه په جهري لمانځه کې سو که او په سري لمانځه کې په زوره قرائت ويل ۶ د لمانځه له فرضو څخه يو فرض له خپله ځايه ځنډول ۷ کوم فرض له خپله ځايه مخکې کول ۸ کوم فرض مکررول يعنی دوه ځله په هيره ادا کول «مسائل سجده سهوه ص ۷۲»

## دسجده سهوې كولو طريقه

سوال: په سجده سهوه كې يوا ړخ ته سلام ګرزول په كاردي كه دواړو لوروته اوترنيمي التحياتوويلووروسته به سلام اړه وي بيابه سجده سهوه كوي كه ترپوره التحيات وروسته اوترسجده سهوې وروسته پوره التحياته ووايي سلام وګرځوي كه څنګه ؟ جواب: ترپوره التحيات ويلووروسته به يوا ړخ ته سلام ګرزوي چې دسهوې دوې سجدې وكړي بيابه ټوله التحياته ، دردوشريف اونوروايي سلام به ګرځوي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۳۹۸ بحواله عالمګيري مصري ج۱ ص ۱۱۷»

## كه دواړو لوروته سلام وګرزوي نو څه حكم دى

سوال: يوازې لمونځ كونكى كه دكوم ركن دهيريدو پرمهال دسجده سهوې لپاره پردواړه طرفه سلام وګرزوي نوڅه حكم دى ؟ جواب: صرف يوې خواته دې سلام اړوي خوكه پردواړو لوروسلام وګرزوي نوهيڅ پروانه لري بيادې هم سجده سهوه وكړي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۳۸۲ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۶۹۱ باب سجود السهو»

## سجده سهوه يې وكړه خوسلام يې ونه ګرځاوى

كه كوم چادسجده سهوې كولو پرمهال پرښى اړخ سلام ونه ګرزاوى مخامخ يې سلام ووايى سجده سهوه يې وكړه بياهم سجده سهوه صحيح شوه «مسائل سجده سهوه ص ۲۴۹ بحواله شامي ج۱ ص ۵۴۲

## كه يې په سجده سهوه كې يوه سجده وكړه

سوال: امام په لمانځه كې سهوه شووروسته امام له اصولو سره سم سجده سهوه وكړه خودسهوې يوه سجده يې وكړه ترالتحيات ،



درودشريف اودعاويلووروسته يې سلام وګرزاوى آيالمونځ صحيح شوكنه ؟ جواب: دسجده سهوې لپاره دوې سجدې واجب دي يوه سجده كفايت نه كوي څكه نولمونځ دراګرزولوړدى «فتاوى رحيميه ج ۳ ص ۳۶ بحواله نورالايضاح ص ۱۱۰ وهدايه ج۱ ص ۱۳۶»

## دواجب په ځنډولو سجده سهوه

سوال: دواجب دځنډولوله امله په سجده سهوه كې اختلاف دى شرعاً څه حكم دى ؟ جواب: په اصل كې سجده سهوه دواجب په پريښودلو لازميږي خوچونكه دواجب په ځنډولو هم ترک دواجب لازميږي څكه په ځنډ دواجب سجده سهوه لازميږي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۳۷۵ بحواله عالمګيرى مصرى ج۱ ص ۱۱۸ باب سجود السهو»

## په ډيروغلطيانوڅوسجده سهوې كيږي

له يوچاڅخه په لمانځه كې ډيرې داسې غلطيانې وشوې چې په هره غلطى سجده سهوه واجبيږي نوپه دې صورت كې يوځل سجده سهوه كول دټولودجبران لپاره كفايت كوي «مسائل سجده سهوه مخ ۵۰»

## په سجده كې دركوع تسبيح ويل

سوال: په ركوع كې سهواً دسجدې تسبيح ويل ياپه سجده كې دركوع تسبيح ويل په دې سره خوبه لمانځه ته څه زيان نه رسيږي ؟ جواب: نه هيڅ زيان نه رسيږي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۳۸۵ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۴۶۱»

همدارنګه درکوع دتسبیحاتو ویلو په ځای په بسم الله ویلو سجده سهوه نه لازمیږي ځکه چې درکوع تسبیحات واجب نه دی «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۳۹۵»
خو تنزیهي مکروه دي که ورپه یاد شي نو درکوع یا سجدې تسبیحات دې ووایي ترڅو له سنت سره سم شي «مسائل سجده سهوه ۴۲ مخ»

## دسجده سهوې په وجوب کې ټول لمونځونه برابر دي

سوال: په تراویحو کې حافظ صاحب پر دوه رکعتونو دناستې پرځای ولاړ شو یا په فتحه ورکولو کښیناستی خو سجده سهوه یې ونکړه دپوښتنې په ځواب کې حافظ صاحب وویل چې تراویح خو سنت دی په دې کې وسجده سهوې کولو یا دلمانځه راګرځولو ته اړتیا نشته نو آیا په تراویحو کې چې له امام څخه داسې غلطي وشي او سجده سهوه ونکړي نو دلمانځه راګرزولو ته ضرورت شته او که نه؟ جواب: دامام داوینا چې تراویح سنت دي په دې کې سجده سهوه کولو ته یا لمانځه راګرزولو ته اړتیا نشته صحیح نه ده لمونځ که فرض وي که واجب، سنت یا نفل وي په ټولو لمونځونو کې دسجده سهوې حکم یورنګه دی اما داختر او جمعې په لمانځه کې کله چې ډیره زیاته ګڼه ګونه وي او په سجده سهوه کولو کې په مقتدیانو کې دانتشار رامنځته کیدو او دتشویش له امله دلمانځه دخرابیدو خطره وي نو په داسې صورت کې سجده سهوه معافیږي همدارنګه که کوم ځای په تراویحو کې هم خلک ډیر وي او په سجده سهوه کولو په خلکو کې دګډوډۍ او دلمانځه دفساد قوي اندېښنه وي نو سجده



سهوه ساقطیږي او دلمانځه راګرزولو ته به هم اړتیا نه وي «فتاوی رحیمیه ج ۳ ص ۲۲ بحواله شامی ج۱ ص ۷۰۵»

## په کومه غلطي لمونځ فاسدیږي

په غلط ویلو چې کوم لفظ پیدا شي دهغه په اړه امام اعظم رحمه الله علیه او امام محمد رحمه الله علیه دا بحث نه کوي چې هغه لفظ په قران کې شته او که نشته دهغوی په نزد قاعده داده چې په ویلو کې په کومه کلمه کې دزیاتوب یا کمښت له امله په دې شرط چې معنی یومخ بدله شي لمونځ فاسدیږي کنه نه فاسدیږي لکه فَمَالَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ کې لا پریږدي یاد «وَعَمِلَ صَالِحاً فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ پرځای یې وَعَمِلَ صَالِحاً وَكَفَرَا فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ ووایي نو لمونځ فاسدیږي - او دکومو حروفو ترمنځ چې توپیر په مشکل سره کیږي هغه که یو دبل پرځای وویل شي نو لمونځ نه فاسدیږي لکه سین، صاد، ضاد، ظ، ذال او نور او دکومو ترمینځ چې فرق آسان دی هغه که یو دبل پرځای وویل شي او معنی یومخ بدله شي نو لمونځ فاسدیږي لکه دصالحات پرځای طالحات وویل شو نو لمونځ فاسدیږي او که چیرې دالفاظو په بدلون معنی یومخ بدله شي نو په لمانځه کې فساد یقیني دی او کنه نه دی لکه دعلیم پرځای خبیر، حفیظ او نور وویل شي نو لمونځ صحیح دی او دوعدأ علینا اناکنا فعلین پرځای په غافلین ویلو لمونځ فاسدیږي او که چیرې ددوو جملو الفاظ بدل کړل شي او معنی هم بدله شي نو لمونځ فاسد دی لکه په ان الابرار لفی نعیم وان الفجار لفی جحیم کې دجحیم پرځای نعیم او دنعیم پرځای په جحیم ویلو لمونځ فاسدیږي او که چیرې معنی نشي بدله لکه لهم فیها زفیر وشهیق .. شهیق وزفیر ووایي

نولمونځ صحیح دی «فضائل ایام والشهور مؤلف خلیفه مولاناتهانوي رَحِمَهُ اللهُ ص ۱۴۷ اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص ۱۳۲ وامدادالمفتیین ص ۲۸۵»

## په لمانځه کې پرکوم لیکل شوي شي دنظرلګېدل

دلمونځ کونکی نظرکه په کوم لیک ولګي اوپه هغه پوه شي نوپه دې صورت کې دده لمونځ نه فاسدېږي ځکه چې دادلمونځ کونکي فعل نه دی بلکه بې اختیاره دده په فهم کې راځي ځکه چې په عامه توګه پردې نظرلګي اوکتونکی په دې پوهېږي له همدې امله علمافرمايي چې دلمونځ کونکي مخ ته دداسې شي نه ایښودل په کاردي ځکه چې په لمانځه کې له شبهاتوځان ژغورل ضروري دي اوله صحیح مذهب سره سم لمونځ صحیح کیږي په خلاف دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ «بحواله اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص ۱۳۷»

## یوه سجده کول ښنګه دي

سوال: حافظ صاحب په یوه رکعت کې یوه سجده وکړه کښیناستی دوهمه سجده مقتدیان ښنګه ورپه یادکړي که مقتدي الله اکبریاسبحان الله وایي نوحافظ صاحب ولاړیږي؟ ځواب: دورپه یادولومطلب داوي چې دسبحان الله اونوروپه ویلوامام ته خبرورکول کیږي چې ځه کمښت اوزیاتوب په لمانځه کې راغلی دی هغه به پخپله فکرکوي ورپه یادوي به یې چې کوم فعل پاته شونه داچې خاص هغه فعل وروښودل شي کوم چې پاته شوی دی ځکه نودخبرورکولولپاره دسبحان الله ویل کافي دی که چیرې ده ته ورپه



یادشوه نوسمه ده کنه ترلمانځه وروسته په معلومیدودې لمونځ راوګرزوي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۲۲»

## دحافظ یوآیت ځوځله ویل

سوال: دتراویحوپه لمانځه کې کوم چې سنت مؤکددی که کوم حافظ یوآیت درې ځلورځله ووایي نوسجده سهوه ضروري ده اوکنه؟ ځکه چې دارډوپه رساله مفتاح الصلاة کې لیکل شوی چې دیوه آیت په دوه ځله ویلو سجده سهوه لازمه ده صحیح څرنګه ده؟ جواب: څوځله دیوه ایت په ویلوسجده سهوه نه راځي اوپه مفتاح الصلاة کې چې څه لیکل شوی دي په هغه پوه نه شوم شاید هغه وخت وي چې صرف یوآیت څوځله ووایي نورڅه ونه وایي یایوازې سورة فاتحه ووایي سورت ونه وایي نودواجب په ترک کیدوسره سجده سهوه لازمېږي خوپه تراویحوکې داسې نه کیږي چې نورڅه یې نه وي ویلي په تراویحوکې زیاتره داپېښیږي چې دوروستني آیت په یادنه ورتلوله کبله یوآیت څوځله ویل کیږي په دې کښې دسجدې دلازمیدوهیڅ وجه نشته «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۰۶»

## دمتشابه (سره ورته) حکم

سوال: دلمانځه ورکولوپرمهال که دحافظ صاحب هیرشي یادمتشابه په وجه دبل ځای آیتونه ویل پیل کړي بیاورپه یادیدوسره دهیریدوله امله له سره قرائت شروع کړي نولمونځ فاسدیږي اوکنه؟ جواب: په دې صورت کې لمونځ صحیح دی اوسجده سهوه واجب نه ده اوکه په غلطۍ سره یې سجده سهوه وکړه بیاهم لمونځ صحیح شو

«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۹۳ بحواله ردالمحتار لومړی ټوک ص ۵۲۰ باب الاستخلاف»

## دتراويحو په لومړي رکعت کې ترکيناستلو وروسته ولاړيدل

سوال: دتراويحو په لومړي رکعت کې امام دولاړيدو پرځای دکيناستلو اراده وکړه له شاخخه اشاره ورته وشوه نوسيده ودريدی ددوو رکعتونو ترپوره کولو وروسته يې سلام وګرزاوی سجده سهوه يې ونه کړه نولمونځ صحيح شو اوکنه؟ که نه دی صحيح شوی نوترخبريدو وروسته په جماعت لمونځ وکړو که يوازې؟ جواب: په دې صورت کې لمونځ صحيح شود راګرزولو ضرورت نشته او سجده سهوه لازمه نشوه ځکه چې تريوه رکعت وروسته که څه اندازه کښيني بيا ولاړشي نو دا هم فقهاؤ جائزليکلي چيرته چې بيا يوازې دکيناستلو اراده وکړي او په پوره توګه کيناستلی هم نه وي چې ولاړشي په دې صورت کې نه سجده سهوه لازمه ده نه دلمانځه دراګرزولو ارتياشته «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۷ بحوال ردالمحتار باب صفة لصلاة ج ۱ ص ۴۳۸»

## په لومړي او دريم رکعت کې په څومره اندازه کيناستو سجده سهوه لازميږي

سوال: که په لومړي يادريم رکعت کې سهواً کيني بيا ولاړشي نو په څومره اندازه ځنډ کولو سجده سهوه لازميږي؟ جواب: په اوږده ناسته سجده سهوه لازميږي د التحيات ويلو په اندازه او يا دې ته نږدې ترديې په لږناسته سجده سهوه نه لازميږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۷ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۴۳۸ باب صفة الصلاة»



## دريم رکعته کول څنګه دي

سوال: حافظ صاحب پردوهم رکعت کيناستی پردريم رکعت يې ترناستې کولو وروسته سلام وګرزاوی نو په دې صورت کې تراويح صحيح کيږي اوکنه؟ جواب: په داسې صورت کې دلمانځه راګرزول ضروري دي ځکه دريم رکعته نفلونو ته اعتبار نشته او کوم قران کريم چې وويل شو دهغه هم راګرزول ضروري دي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۴۲۰ بحواله شامي ج ۱ ص ۷۵۲»

دامدادالفتاوی پرحاشيه استاذ محترم د دې مسئلې تشريح ليکلې ده چې که پردوهم رکعت يې ناسته هيره شوه ولاړشو او په دريم رکعت کې ترناسته کولو وروسته يې سجده سهوه وکړه سلام يې وګرزاوی نو دې سره رکعتونه بې کاره شول لومړی شفعه فاسده شوه دفاسديدو په وجه په دې سره رکعتونو کې ويل شوی قران کريم راګرزول ضروري دي «حاشيه امدادالفتاوی ج ۱ ص ۴۵۸»

## حافظ ودريم رکعت ته ولاړشو

سوال: که چيرې په تراويحو کې په غلطۍ سره حافظ ودريم رکعت ته ولاړشو او په دريم رکعت کې ورپه ياديدو وروسته څلورم رکعت هم اداکړي نو دا څلور رکعته بلل کيږي که دوه؟ که دوه شميرل کيږي نو په هغه نورودوو کې چې کوم قران وويل شو دهغه دراګرزولو ضرورت شته او کنه؟ جواب: د څلورو رکعتونو کولو په صورت چې کوم قران په اخرني دوو رکعتونو کې وويل شو دهغه دراګرزولو ارتيا نشته «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۵ بحواله عالمګيري ج ۱ ص ۱۱۷»

ددې تفصیل دامدادالفتاوی پرحاشیه استاذمحترم حضرت
مولانامفتی سعیداحمدصاحب پالنپوری مدظله داليکلي دي چې
که يې پردوهم رکعت دتشهدپه اندازه ناسته وکړه
ولاړشواوترڅلورورکعتونوکولووروسته يې سلام وګرزوي
نوڅلورسره رکعته صحيح کيږي ټول په تراويحوکې شميرل کيږي
اودسجده سهوې اړتيانشته «حاشيه امدادالفتاوی ج۱ص ۴۹۸»

## څلوررکعته تراويح چې په کې اوله ناسته ونکړي

سوال: په تراويحوکې امام دريم رکعت ته ولاړشودهغه له وجه يې
څلوررکعته پوره کړل خوپردوهم رکعت يې ناسته ونه کړه په داسې
صورت کې په سجده سهوه کولودوه رکعته ګرزي که څلور؟ جواب:
په درمختاراوشامي کې دتراويحوپه بيان کې ددې تشريح راغلې ده
چې په داسې صورت کې دوه رکعته تراويح بلل کيږي «فتاوی
دارالعلوم ج۱ ص ۲۶۲ بخواله ردالمحتار ج۱ص ۶۶۰ و۶۶۱»

## په دوهم رکعت کې په هيره ولاړشو

سوال: که چيرې دتراويحوتردوهم رکعت وروسته دناستې پرځای
ولاړشووروسته ورپه يادشونوڅه به کوي؟ جواب: له سجدې څخه
مخکې که ورپه يادشونوکښيني دې اوسجده سهوه دې
وکړي «فتاوی دارالعلوم ج۴ص ۴۷۵ بحواله ردالمحتارباب
سجودالسهوج۱ص ۶۹۶» ددې مسئلې تشريح دامدادالفتاوی
پرحاشيه استاذمحترم مدظله داډول کړې ده چې که چيرې په
تراويحوکې تردوهم رکعت وروسته يې ناسته هيره شوه
ولاړشونوترڅوچې ددريم رکعت سجده يې نه وي کړې کښيني به



اوسجده سهوه دې وکړي لمونځ دې پوره کړي اوکه ددريم رکعت
سجده يې وکړه نوڅلورم رکعت دې ورسره يوځای کړي سجده سهوه
دې وکړي سلام دې وګرزوي خودغه څلوررکعتونه صرف دوه شميرل
کيږي اوپه اوله شفعه کې چې کوم قران وويل شوهغه به راګرزوي
ځکه چې لومړۍ شفعه داولې ناستې په پرېښودلوفاسده شوه ځکه
نوپه تراويحوکې نه شميرل کيږي اوپه دې کې ويل شوی قران
راګرزول ضروري کيږي اوچونکه تکبيرتحريمه باقي ده ځکه دوهمه
شفعه صحيح کيږي اوپه هغه کې ويل شوی قران هم معتبردی
«حاشيه امدادالفتاوی ج۱ص ۴۹۷»

## دتراويحوپردوهم رکعت دناستې په هيريدوپرڅلورم رکعت دناسته کولوڅه حکم دی

سوال: په تراويحوکې ناسته هيره شوه ولاړشو(بې له ناستې) که
څلوررکعته پوره کړي سجده سهوه وکړي نوصرف دوه رکعته ګرځي
آيادغه دوه رکعته په تراويحوکې شميرل کيږي اوکنه؟ آياپه
سنتواونفلوکې آخري ناسته فرض ده اوکنه؟ په دې صورت کې
دفرض په اداکولوکې آياصرف ځنډراځي که فرض فوت کيږي؟
جواب: په نفلوکې ترهردوه رکعته وروسته ناسته کول ضروري دي
ځکه نوپه نفلوکې که پردوه رکعته ناسته ونکړله شوه نولمونځ
فاسديږي خوڅلوررکعته اوترڅلوروزيات شپږ، اته، لس، دوولس
،څورلس، شپاړس اواتلس ياشل رکعته که وشي اوپه مينځ کې
ناسته ونه شي نودسجده سهوې په کولوځينې فقهاء
دووکعتوتراويح قائل دي اوددغوښاغليوپه نزدناسته پای ته

رانقلیږي نوصرف دفرضو په ادا ینه کې ځنډراځي چې جبران یې په سجده سهوه کیږي تراویح مؤکد سنت په جماعت سره کیږي ځکه ددې درجه فرض اوواجب ته نږدې ده محض نفل نه ده ځکه په تراویحو کې ځینې فقهاء ددوورکعتونو دادا ینې وینا کوي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۴۲۱ بحواله شامي ج۱ص ۷۵۲ با ب الوتر والنوافل»

که ترڅلوررکعته کولوورو سته سجده سهوه ونکړي نو...

سوال: حافظ دتراویحو ددوورکعتونو کولو پرځای په یوه سلام څلوروکړی حافظ چې دریم رکعت ته ولاړیدی فتحه ورکول شوه خوده وانه خیسته اوپه پایې کې یې سجده سهوه هم ونه کړه په دې صورت کې څورکعته تراویح اداشوې که نه دي صحیح شوي نودقرائت راګرزولو ضرورت شته او کنه؟ جواب: دریم رکعت ته دولاړیدو پرمهال چې فتحه ورکول کیده نو حافظ صاحب ته کیناستل په کارؤ خو کله چې نه کیناستی او څلوررکعتونه یې پوره کړل نو په سجده سهوه کولو سره سلام ګرزول په کارؤ په دې صورت کې به دوه رکعته تراویح شوې وای اودوه نفل خو چې سجده سهوه یې ونه کړله نو غلطي یې وکړه په دې صورت کې دوه رکعته تراویح شوې خو هغه هم واجب الاعاده دي په وخت کې دننه دننه یې راګرزول په کاردي دوخت تروتلو وروسته ددې قضاء نشته خو په دغو څلوررکعتونو کې چې څومره قران ویل شوی دهغه راګرزول ضروري دي که پردوه رکعته یې ناسته وکړه نو څلوررکعته تراویح اداشوې او دقرائت راګرزولو ته اړتیا نشته «فتاوی رحیمیه ج۲ ص ۴۱۴»



بې له ناستې دڅلوررکعتونو په اړه دمولانا تهانوی رحمة الله علیه رایه

سوال: په تراویحو کې که چیرې ددوورکعتونو پرځای امام څلوررکعته وکړي په مینځ کې ناسته ونه کړي او په پای کې سجده سهوه وکړي نو لمونځ صحیح کیږي او کنه؟ او که صحیح کیږي نو دوه رکعته صحیح کیږي که څلور؟ او که دوه صحیح کیږی نو اولني دوه که اخرني؟ اود کومو رکعتونو دقران کریم دراګرزوني ضرورت به وي؟ جواب: له عالمګیري لومړی ټوک ص ۷۵ څخه معلومیږي چې په ناسته نه کولو لومړی شفعه هم نه فاسدیږي خو ټول هم نه شمیرل کیږي بلکه چې دواړې شفعې سره یوځای شي یوه شفعه بلل کیږي او کله چې ټول نه شمیرل کیږي نو یوه شفعه به بله کوي – پاته شوه دا خبره چې دکومې شفعې ویل شوی قران کریم معتبردی اود کومې قران بایدراوګرزول شي نو دا پردې موقوف دی چې دا معلوم شي چې کومه شفعه تراویح ده چې په هغه کې ویل شوی قران معتبرشوی دی او کومه نفل چې په هغه کې ویل شوی قران داعادې وړدی نو په دې کښې ما ته شک دی له نورو علماؤ څخه دتحقیق وشي زما په فکر که صرف دقران دراګرزولو په هکله دآسانی لپاره دوهم قول عملي کړل شي کوم چې دوې شفعې معتبرې بولي نو ګنجائش شته نو شفعه خودې یوه بله وکړي اما قران دې نه راګرزوي «امدادالفتاوی ج۱ ص ۴۹۸»

که په تراویحو کې پردوهم رکعت ناسته هیره شوه ولاړشو نو ترڅو چې ددویم رکعت سجده یې نه وي کړې کښېنې دې او سجده سهوه دې

وکړي لمونځ دې پوره کړي او که ددریم رکعت سجده یې کړې وه نوڅلورم رکعت دې ورسره یوځای کړي ترسجده سهوه کولووروسته دې سلام وګرزوي خوداڅلوررکعته صرف دوه شمیرل کیږي اوپه اوله شفعه کې چې څومره قران ویل شوی دی هغه به راګرزوي ځکه چې لومړی شفعه دناستي پرینبودو په وجه فاسده شوه ځکه نوپه تراویحو کې نه شمیرل کیږي اوپه دې کې د ویل شوي قران اعاده ضروري کیږي البته تحریمه خوپاته ده ځکه دوهمه شفعه صحیح کیږي اوپه هغه کې ویل شوی قران هم معتبریږي «حاشیه امدادالفتاوی ج۱ ص ۴۹۷»

## په دوهم رکعت کې ترتشهدوروسته ولاړیدل اوبیرته کیناستل

سوال: که په دوه رکعته کې ترتشهد یعني التحیات وروسته ولاړشو اوبیرته کښیناستی نوبیاالتحیاته ووایي سلام وګرزوي که ترتشهدویلووروسته سجده سهوه وکړي اوبیاسلام وګرزوي؟ یوداچې ترپوره ولاړیدووروسته سمدستي کښیني دوهم څه ووایي دریم ترسورت ختمولووروسته کیناستی ددریوسره حالتونویوحکم دی که بیل بیل؟ جواب: په دري سره صورتونو کې دې کښیني التحیات دې ووایي اوسجده سهوه دې وکړي بیادې التحیات اونورووایي سلام دې وګرزوي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۳۸۳ بحواله ردالمحتار ج۱ ص۷۰۰»



## که یو سورت شروع کړي بیاهغه پریږدي بل ووایي

سوال: امام دتراویحو داخرني دوه رکعتیزوپه لومړي رکعت کې ترسورۂ فاتحه وروسته قل اعوذ وویل سمدستي یې تبت یدا شروع کړه یوه مقتدي دښودلو په توګه قل اعوذبرب الفلق پوره ووایي امام دوهم رکعت هم پوره کړ اما سجده سهوه یې ونکړه نوپه دې صورت کې لمونځ صحیح کیږي که به ددغودوورکعتونو اعاده ضروري وي اوداچې سجده سهوه ضروري ده او کنه؟ جواب: په دې صورت کې لمونځ صحیح دی او سجده سهوه واجب نه ده لکه چې په ردالمحتار لومړی ټوک ص ۵۱۰ کې څرګندونه شته «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۳۷۵»

## ځیني حافظان په رکوع اوسجده کې قران کریم یادوي

۱ مسئله: دپوښتنې ورمسئله داده چې ځیني کچه حافظان دتراویحوپه رکوع، سجده التحیات اونوروکې دتسبیحاتوپرځای په خپل زړه کې مخته آیتونه وایي ۲ یایې په ژبه سوکه وایي ۳ یاخويې په ژبه نه وایي تسبیحات هم وایي خوزړه اودماغ یې راتلونکوآیتونوته متوجه وي ددغودریوسره صورتونو تفصیلي اوله دلیل سره شرعي حکم بیان کړئ جواب: درکوع اوسجدې په حالت کې قران کریم ویل صحیح نه دي ځکه چې په رکوع او سجده کې له قرائت ویلو څخه په حدیث کې منعه راغلې ده بیاکه دالتحیات پرځای قران وویل شي نوسجده سهوه کول لازمیږي ځکه چې تشهدویل واجب دي اودهغه په ترک سره سجده سهوه لازمیږي که سجده سهوه ونه کړي نولمونځ به نیمګړی وي راګرزول یې واجب دي

وقال فی البحرباب السجود السهو يجب سجود السهو بترکه (ای بترک التشهد) ولو قليلا فی ظاهر الرواية فانه ذکرواحد منظوم فترک بعضه کترک کله «شامي ج١ ص ٣١٣» څرنګه چې په رکوع او سجده کې تسبيحات سنت دي نو ددوی په پريښودو لمونځ له تنزيهي کراهيت سره اداکيږي ٣ په دې صورت کې که څه هم لمونځ خو به اداشي امااسې کول غوره نه دي فقط والله اعلم «حبيب الرحمن خيرابادي عفاالله عنه مفتی دارالعلوم ديوبند ١۴٠٢/٧/٢ه»

## دضادلفظ بايد څرنګه اداشي

سوال: په لمانځه کې دضادلفظ بايد څنګه وويل شي؟ جواب: ضادله خپل مخرج څخه ويل په کاردي که نشي اداکيدای نو هرڼګه چې اداشي لمونځ صحيح کيږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ٩١ باب زلة القاری بحواله ردالمحتار ج١ ص ٥٩١»

## ضالين په دالين ويلو باندې لمونځ صحيح کيږي کنه

سوال: ضالين په دالين ويلو باندې لمونځ صحيح کيږي او کنه؟ جواب: که چيرې ضاد د مفخم دال (ډک دال) په صورت ويلو سره دلمانځه نه صحيح کيدو حکم ورکول شي نو د ټول عرب قاريانو، علماؤ او امامانو څخه به دهيچا هم لمونځ صحيح نه شي او نه به دمقتديانو لمونځ صحيح شي ځکه چې هغوی ټول يې دالين وايي نو معلومه شوه چې دغه حکم ورباندې لګول غلط دي او په کې حرج دی خو غوره همدغه ده چې په مخرج کې يې دا اداکولو هڅې کوئ «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ٩٢»

## دضاد دلفظ په اړه دمولانا رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله عليه فتوی

د، ظ، ض د حروفو په بيلوالي او د مخارجو په بيلوالي کې خو شک نشته او په دې کې هم شک نشته چې قصداً کوم حرف د بل په مخرج کې اداکول سخته بې ادبي ده او زياتره لمونځ هم ورباندې فاسديږي خو کوم خلک چې معذور دي او دوی دغه لفظ په مخرج کې نشي اداکولای هغوی دې ترخپله وسه کوښښ کوي ددوی لمونځ هم صحيح دی او ډک دال ښکاره ده چې په خپله کوم حرف نه دی بلکه ضاد دی په خپل مخرج کې په پوره توګه ادانشو نو کوم خلک چې خالص دال يا خالص خاء قصداً ووايي په هغوی پسې لمونځ مه کوئ خو کوم خلک چې د ډک دال په اواز کې وايي په هغه پسې لمونځ کوئ کوم څوک چې سره له قدرت درلودلو ضاد دضاد په مخرج کې نه اداکوي هغه ګنهګار هم دي او که دبل لفظ په بدلون معنی بدله شوه نو لمونځ به هم نشي صحيح او که سره له هڅو او کوښښه ضاد په خپل مخرج کې نشي اداکولای نو داسې سړی معذور دی دده لمونځ صحيح کيږي او څوک چې په خپله پر ويلو قادروي نو په داسې معذور پسې لمونځ کولای شي خو کوم څوک چې قصداً خالص «دياظ» وايي په هغه پسې لمونځ نه صحيح کيږي «فتاوی رشيديه کامل ص ٢٧۴ و ٢٨۴»

## دضاد دلفظ په اړه د پاکستان دمفتي اعظم محمد شفيع صاحب رحمه الله عليه فتوی

دعوامو لمونځونه خو بيله تفصيل او تنقيح په هرحال صحيح کيږي که ظاء ووايي او که دال يا زاء ځکه چې هغوی قادر هم نه دي او ګنې چې

همدغه يې اصلي حرف اداکړي اودقاريانو او علماؤ په لمانځه کې
بيان شوى تفصيل شته چې که غلطي قصداً ياپه بې پروايي سره وي
لمونځ فاسد دى اوکه دژبې داوښتو ياتميزنه کولو په وجه وه
نوجائزدى «جواهر الفقه ج۱ص ۳۳۸»

يادونه: خوله جوازاونه فاسديدوڅخه دانه ثابتيږي چې سړى
دافکروکړي چې دتل لپاره غلط رواشول اوويونکى به ګنهګار هم نه
وي بلکه دخپل وس اوقدرت سره سم دصحيح ويلومشق کول
اوکوشش جاري ساتل ضروري دي کنه ګنهګاربه شي که څه هم
لمونځ فاسدنه وي لکه چې په عالمګيري لومړي ټوک ص ۴ څلورم
باب کې څرګندونه شته «احقرمحمدشفيع الديوبندي غفرله خادم
دارالافتاء دارالعلوم ديوبند ۲۰/ ۵/ ۱۳۵۱هج»

## په سلام کې که دعليکم پرځاى «عليتم» له خولې ووزي

سوال: که چيرې په السلام عليکم کې دعليکم پرځاى عليتم له خولې
ووزي نولمونځ صحيح کيږي کنه؟ جواب: لمونځ صحيح شو «فتاوى
دارالعلوم ج۴ ص ۴۵ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۴۱۸ باب صفة
الصلاة»

## په لمانځه کې د«سلام عليکم» ويلو حکم

سوال: که چيرې امام دالسلام عليکم ورحمة الله پرځاى صرف «سلام
عليکم ورحمة الله» ووايي نوڅه حکم دى؟ جواب: دا دسنت خلاف دى
په دې سره لمونځ مکروه کيږي داهغه وخت کله چې امام په تلفظ کې
سلام عليکم ووايي کله داسې هم کيږي چې الف خلک وانه وري امام

خوالسلام عليکم ووايي خلک سلام واوري نودامکروه نه ده
«کفايت المفتى ج ۳ ص ۴۳۹»

## په سلام کې بايد مخ څومره وګرزول شي

عن سعدبن ابى وقاص قال کنت ارى رسول الله ﷺ يسلم عن يمينه
وعن يساره حتى ارى بياض خده «رواه مسلم» ژباړه: له حضرت
سعدبن ابى وقاص ؓ څخه روايت دى چې ما په خپله رسول الله ﷺ
ليدلى ؤ چې دسلام کولو پرمهال به ده مبارک ﷺ ښي اوکين اړخ ته مخ
مبارک ګرزاوى اومخ مبارک به يې ښي اوکين طرفته دومره اړاوى
چې مونږ به د هغه دبارخومبارک سپين والى ليدى «معارف الحديث
ج۳ ص ۳۱۰»

# اتم باب

# دتلاوت سجده

## دتلاوت دسجدې ثبوت اوفضائل

په صحيحين (بخاري اومسلم) کې روايت راځي حضرت ابن عمر ؓ
وايي: رسول ﷺ به دقران کريم تلاوت کاوه کله چې به يې دسجدې
سورة ووايه نوده مبارک به سجده کوله اومونږ به هم ورسره سجده
کوله تردې چې په مونږ کې به ځينې حضراتودتندي لګولو ځاى نه
موندى رسول الله فرمايلي چې ابن ادم چې کله دسجدې آيت وايي
اوسجده کوي نوشيطان يوطرفته شي ژاړي اووايي هاى غضبه !
دآدم اولادې ته دسجدې حکم وشو هغوى سجده وکړه ددوى لپاره
جنت دى اوماته دسجدې حکم وشو خوماحکم ونه مانى نوزمالپاره
دوزخ دى .

دامت په دې اجماع ده چې په قران کريم کې ځينې ځانګړي ځايونه
داسې دي چې دهغوی په ويلو شرعًا دسجدې کولو حکم کړی
«کتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱ ص ۷۴۴»

## دتلاوت سجده فرض ده که واجب او ددې داداکيدو طريقه څه ده

سوال: دتلاوت سجده فرض او که واجب ده څرنګه بايد اداشي ؟يعني
په سجده کې اوله سجدې پيل کولو مخکې ياترسجده وروسته څه
څه بايد وويل شي ؟ اوکله چې څوک دقران کريم په تلاوت مشغول
وی دسجدې آيت ووايي نودی پرځنګنوشي په ناسته سجده وکړي
که جګ شي بيادولاړې څخه سجدې ته ولاړشي ؟ جواب: دتلاوت
سجده واجب ده طريقه يې داسې ده چې الله اکبر ووايي سجدې ته
لاړشي اودرې ځله يازيات نه زيات... پنځه يااووه ځله» سبحان ربي
الاعلى ووايي بيا الله اکبر ووايي پورته شي سجده اداکيږي که په
ناسته سجدې ته ولاړی اوترسجدې وروسته بياناست ؤ بيا هم څه
پروانلري غوره داده چې جګ شي سجدې ته ولاړشي اوترسجدې
وروسته جګ شي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص۴۳۰»

## دتلاوت دسجدې نيت

مستحب داده چې کله دسجدې اراده وکړي نوولاړشي سجده وکړي
اوترسجده کولو وروسته ولاړشي ياکښيني دواړه صورتونه جائزدي
کله چې دسجدې اراده وکړي نوپه زړه کې دنيت وکړي يادې په خوله
ووايي چې دالله ﷻ لپاره دتلاوت سجده کوم دالله اکبر په ويلو دې
سجده اداکړي «ترجمه عالمګيري ج۱ ص۲۱۷»



## دتلاوت دسجدې داداکولو طريقه

داحنافو په نزد دتلاوت دسجدې طريقه يادهغه پيژندنه داده چې سړی
په دوه تکبيرونو يوه سجده وکړي يو تکبير خودسجدې لپاره پرځمکه
دتندي ايښودلو پرمهال اودوهم ځل له سجدې څخه دراپورته
کيدو پروخت دتلاوت په سجده کې تشهد او سلام نشته دادواړه
تکبيرونه سنت دي ځکه نوکه بيله تکبيرو يلو تندی پرځمکه باندې
کيږدي هم سجده اداکيږي خومکروه ده «کتاب الفقه على المذاهب
الاربعة ج۱ ص ۷۳۵»

## په تراويحو کې دتلاوت دسجدې اعلان کول څنګه دي

سوال: په تراويحو کې دسجدې اعلان کيږي چې په فلاني رکعت کې
سجده ده شرعاً ددې څه حکم دی ؟ جواب: په خيرالقرون يعني غوره
پيړيو کې په عربو او عجمو کې دګڼ شميرناپوهانو اونوي
مسلمانانو له وجود سره سره له سلفو صالحينو څخه دا اعلان ثابت نه
دی حال دا چې هغوی دا سلامي اعمالو په تبليغ کې ډيرپياوړي
اودعبادت دسمون ډيرحريص ؤ او فقهاؤ هم د دې ډول اعلان
لارښوونه نه ده کړي که اړتيا وای نوهرومرو به تاکيدورباندې شوی ؤ
لکه چې دمسافرامام لپاره په ځانګړي توګه تاکيدفرمايل شوی چې
لمونځ کونکيو ته دې دخپل مسافروالي خبرورکړي که ترلمانځه
مخکې وي که وروسته چې زه مسافريم ځکه چې دلته ضرورت دی
خودتلاوت په سجده کې په عامه توګه اړتيانه وي که بيله
اړتيادا طريقه جاري وه نوداقوی انديښنه شته چې لکه څنګه چې په
ځينې ښارونو کې رواج اودوددی چې دجمعې دلمانځه پروخت

داسې اعلان کيږي الصلاة سنة قبل الجمعة يا داوېل کيږي الصلاة
رحمکم الله او دا اعلان سنت يا فعل حسن ګڼل کيږي هم دارنګه
د تلاوت د سجدې دغه اعلان هم ضروري او ډير مسکن او شوني ده چې
سنت وګڼل شي حضرت شاه ولی الله رحمه الله يادونه کړې چې د مباح
شيانو په ضروري ګڼلو کې له نورو ناورتياؤ پرته ددې خبرې هم احتمال
دی چې مباح سنت وبلل شي او نامسنون مسنون بلل د دين تحريف
(بدلول) دي خو که زياته ګڼه ګونه وه لکه په غټه ښارونو کې چې وي
چې ترليرې صفونه ولاړوي او څه صفونه په پورتنيو
پوړيزو او منزلونو کې وي او دغلطيد و قوي احتمال وي چې خلک به
د تلاوت په سجده خبر نشي او د سجدې پرځای به رکوع کول پيل کړي
نو په داسې ځايونو کې «دالضرورات تبيح المحظورات تر قاعدې
لاندې د اعلان اجازه ورکول کيدای شي خو هرځای دغه حکم نه دی
«فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۲۴۵»

## که د سجدې آيت د سورت په پای کې راشي

سوال: که په تراويحو کې د سجدې آيت د رکوع يا سورت په پای کې
راشي نو څرنګه کول په کار دي؟ جواب: که د رکوع يا سورت
پرختميدو د سجدې آيت راشي نو د سجدې د اداکيدو دوې طريقې دي
يوه دا چې سمدستي د تلاوت سجده وکړي ولاړ شي بيا پرمخ
څو آيتونه ووايي رکوع وکړي دوهمه دا چې په رکوع کې د تلاوت
د سجدې په نيت کولو سجده اداکيږي خو سمدستي به رکوع کوي
دوهم صورت مناسب نه دی څکه چې يوازې د امام نيت کافي نه دی
دمقتديانو سجده تلاوت به پاتې شي او ترسلام وروسته به يې



اداکوي سمدستي جلا سجده بايد وکړي که د سورت په پای کې
سجده وي نو کله چې د تلاوت له سجدې راپورته شي د دوهم سورت
دوه درې آيتونه دې ووايي بيا دې رکوع وکړي او که د رکوع په پای
کې سجده وه نو ترسجده وروسته دې د دوهمې رکوع څه برخه ولولي
دلمانځه رکوع دې وکړي «فتاو دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۷ بحواله
ردالمحتار ج ۱ ص ۷۲۳»

په فتاوی محموديه کې ليکل شوي چې که د سورت په پای کې
د سجدې آيت ؤ نو چې سجده وکړي را ولاړ شي سمدستي دې رکوع نه
کوي (په دې فکر چې سورت پای ته ورسيد) بلکه بايد
د دريو آيتونو په اندازه قرائت ووايي رکوع وکړي «فتاوی محموديه
ج ۲ ص ۳۵۸»

## د تلاوت سجده دلمانځه له سجدې سره اداکيږي او که نه؟

سوال: که چيرې حافظ په تراويحو کې د تلاوت سجده دلمانځه له
سجدې سره اداکړه يعني درې سجدې يې وکړې نو لمونځ څنګه شو؟
جواب: په لمانځه کې چې کله د سجدې آيت تلاوت کړي بايد هم هغه
وخت سجده وکړي او که يې وځنډوله دلمانځه له سجدې سره يې
اداکړه نو سجده سهوه لازمه ده ترسجده سهوې وروسته دلمانځه
دراګرزولو ضرورت نشته قصداً د تلاوت سجده ځنډول صحيح نه دي
د سجدې ترآيت سمدستي وروسته يا زيات نه زيات تر دوه آيته
وروسته د تلاوت سجده کول ضروري دي کنه ګنهګار به شي «فتاوی
دارالعلوم ج ۴ ص ۲۷۵ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۷۲۲ باب سجدة
التلاوت»

## که دتلاوت دسجدې یو څه برخه ووایي

سوال: دسجدې دآیت دپای الفاظ یې ونه ویل نو سجده تلاوت واجب ده او کنه ؟ جواب: که چیرې هغه کلمه یې ولوسته په کومه کې چې دسجدې لفظ دی نو دتلاوت سجده واجبیږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۹ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۷۱۵ باب سجود التلاوت»

## په رکوع او سجده کې دتلاوت دسجدې نیت کول څنګه دي

سوال: حافظ صاحب په تراویحو کې دسورة الاعراف دسجدې آیت ولوستی رکوع ته ولاړی سجده تلاوت یې ونکړه ترلمانځه وروسته دپوښتنې په جواب کې حافظ صاحب وویل چې که په رکوع یاسجده کې دتلاوت دسجدې نیت وکړل شي نو دتلاوت سجده اداکیږي آیادا خبره صحیح ده ؟ جواب: په لمانځه کې دتلاوت دسجدې دادا کولو طریقه داهم ده چې دسجدې ترایت ویلو وروسته سمدستی دلمانځه رکوع وکړي (لکه په پوښتل شوي صورت کې چې شوي دي) یادوه درې کوچني آیتونه ووایي دلمانځه رکوع وکړي او په هغه کې دتلاوت دسجدې نیت وکړي نو دتلاوت سجده اداکیږي که یې په رکوع کې نیت ونکړ نو دلمانځه په سجده کې دتلاوت سجده اداکیږي که یې دسجدې نیت کړی وي کنه خو که امام په رکوع کې دتلاوت دسجد نیت وکړ او مقتدیانو ونکړی نو دهغوی سجده نه اداکیږي ځکه نو په داسې صورت کې امام ته په کار دي چې په رکوع کې دې دتلاوت دسجدې نیت نه کوي دلمانځه په سجده کې به دټولو دتلاوت سجده اداشي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۹۲ بحواله ردمحتار ج ۱ ص ۷۲۳ و ۷۲۴»



په بیان شوي صورت کې که له امام سره مقتدیانو هم په رکوع کې دتلاوت دسجدې نیت کړی وي نو دټولو دتلاوت سجده اداکیږي او که مقتدیانو نیت نه وي کړی او امام کړی وي نو دمقتدیانو دتلاوت سجده نه اداکیږي او که امام په رکوع کې نیت نه وي کړی نو دلمانځه په سجده کې که څوک نیت وکړي که یې ونه کړي دټولو دتلاوت سجده اداکیږي «په دې شرط چې تر دری آیته کم یې ویلي وي»

یادونه: له مسئلې څخه خلک خبرنه وي ځکه غوره داده چې دتلاوت سجده ځان ته اداکړله شي دلمانځه په رکوع کې یاسجده کې په اداکولو خلک په اندیښنو کې مه اچوئ.

مسئله: که عملي کول غواړئ نو لومړی مقتدیان په مسئله پوه کړئ بیا عمل وکړئ.

## که مقتدي له امام سره دتلاوت سجده ونکړای شوه نو...

سوال: که چیرې په غلطی سره مقتدي دتلاوت سجده ونکړي نولمونځ صحیح کیږي او کنه ؟ جواب: په لمانځه کې چې کومه دتلاوت سجده واجب شي هغه ترلمانځه وروسته نه اداکیږي او ساقطیږي له شامی څخه معلومیږي چې هغه سجده ساقطه شوه او دلمانځه دراګرزولو هم اړتیا نشته خو که قصداً یې پرېښې ده نو توبه دې اوباسي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۵۲ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۷۲۲»

## دتلاوت دسجدې ترادا کولو وروسته بيا په کومه وجه لمونځ راګرزونکي به څه کوي

سوال: حافظ دسجدې آيت ولوستی بيايې سجده ونه کړه اوبيا په کومه وجه دلمانځه راګرزولو اړتيا پيښه شوه بيايې هم هغه آيت ووايي نودوهم ځل سجده کول په کاردي که لومړی کافي ده؟ جواب: بيا سجده کول په کاردي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۸ بحواله عالمګيري مصري ج۱ ص ۱۲۵ باب سجدة التلاوة»

## دسجدې ترآيت ويلو به څومره وروسته سجده کوي

سوال: په لمانځه کې دتلاوت سجده وويله شوه سمدستي يې سجده ونکړه تردرې ايته يې وروسته وکړه نواداشوه اوکنه؟ که لمونځ راګرزول غواړي؟ جواب: په لمانځه کې دسجدې دآيت ترتلاوت وروسته سمدستي سجده واجب ده که تردرې آيته ويلو وروسته وکړل شوه نوقضا شمېرل کيږي اودځنډ له امله سجده سهوه واجبيږي که سجده سهوه يې ونکړه نودلمانځه اعاده واجب ده کومه دتلاوت سجده چې په لمانځه کې واجب شوه هغه ترسلام ګرزولو مخکې بلکه ترسلام ګرزولو وروسته هم ترڅو چې يې دلمانځه ضد کوم حرکت نه وي کړی سجده کول په کاردي تردې وروسته له استغفار اوتوبې پرته دمعافی کوم بل صورت نشته «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۹۴»



## دسجده تلاوت په اوريدو ځيني مقتديان سجدې ته ولاړل او ځيني رکوع ته

سوال: امام دسجدې آيت ولوستی اودتلاوت دسجدې پرځای رکوع ته ولاړی کوم مقتديان چې امام ته نژدې ؤ هغوی رکوع ته ولاړل اوکوم چې له امامه لرې ؤ اوهغوی ته دامعلومه وه چې دلته دتلاوت سجده ده هغوی سجدې ته ولاړل کله چې امام سمع الله لمن حمده وويله نوهغه وخت دوی ته معلومه شوه چې امام په رکوع کې ؤ له دوئ څخه څه خلک له سجدې څخه کښيناستل بيا له امام سره سجدې ته ولاړل اوس پوښتنه داده چې کومو خلکو دامام تررکوع وروسته رکوع وکړه له امام سره په سجده کې شريک شول دهغوئ لمونځونه صحيح شول اوکنه؟ جواب: کوم خلک چې له امام سره په رکوع کې شريک نه شول دهغوی دغه رکعت ځيني فوت شو بيا چې کله هغوی رکوع وکړه له امام سره په سجده کې شامل شول نوددوی لمونځ صحيح شو اوکوم خلک چې بې له رکوع کولو په سجده کې وروسره شريک شول دهغوی يو رکعت فوت شو که چيرې هغوئ دامام ترسلام وروسته خپل رکعت راګرزولی وای نولمونځ صحيح کيدی خو کله چې دوی سلام وګرزاوی نولمونځ صحيح نه شو «کفايت المفتی ج ۴ ص ۳۸۷»

## په لمانځه کې دتلاوت دسجدې آيت ويونکي سجده هيره شوه

سوال: په تراويحو کې حافظ صاحب دتلاوت دسجدې آيت ووايي نوسجده څه وخت بايدوکړي؟ جواب: غوره داده چې هماغه مهال

سجده وکړي کوم وخت چې يې دسجدې آيت ولوست اوفقهاؤليکلي چې که وروسته ورپه يادشوه اوهغه وخت يې ونکړه نوسجده سهوه لازمه ده خودځنډيدوګنجائش هغه وخت دی کله چې په لمانځه کې نه وي په لمانځه کې به يې سمدستي اداکوي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۴۲۴ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۷۲۳، ۷۵۱»

## که دحافظ دسجدې آيت هيرشي

سوال: دحافظ صاحب دسجدې آيت هيرشو مقتدي ياسامع فتحه ورکړه نوحافظ صاحب دسجدې آيت وواېونويوه سجده دتلاوت به وي که دوې؟ جواب: دامام دسجدې آيت هيرشو مقتدي فتحه ورکړه امام دهغه آيت ترويلووروسته سجده وکړه نودغه سجده کافي ده په دې صورت کې دوې سجدې نه واجبيږي «فتاوی رحيميه ج۳ ص ۳۹»

## دتيرشوي رکعت دداکولو پرمهال که له امام څخه دسجدې آيت واوري نو ...

سوال: حافظ اومقتديان ترڅلوررکعتونووروسته په ترويحه کې کيناستل زه هغه وخت دتيرشوي رکعت داداکيدولپاره ولاړشوم تراوسه لازمالمونځ پوره شوی نه ؤ چې امام تراويح شروع کړې اودسجدې آيت يې ولوستی ماهم واوريدی نوپرمادتلاوت سجده واجب ده اوکنه؟ جواب: په بيان شوي صورت کې دتلاوت سجده لازمه شوه هوکه دامام ترسجده کولومخکې ياترسجده کولووروسته دهمدې رکعت په پای کې دې په امام پسې نيت وتړی اوپه لمانځه کې شريک شوې نودامام سجده ستاسولپاره کافي ده جلاسجده



کول نشته «فتاوی رحيميه ج۱ ص۳۵۱ بحواله عالمګيري ج۱ ص ۱۳۳»

## که دسجدې دآيت په اوريدودسجدې پرځای رکوع ته ولاړې

سوال: دتراويحو په لمانځه کې حافظ صاحب دسجدې آيت ولوست اوسجدې ته ولاړې خومقتدي رکوع وفهموله رکوع ته ولاړې نوده دلمونځ اوسجده اداشول اوکنه؟ جواب: مقتدي ته په کاردي چې رکوع پريږدي سجدې ته ولاړشي که رکوع يې وکړه بياسجدې ته ولاړې نولمونځ صحيح کيږي اودتلاوت سجده هم اداکيږي «فتاوی رحيميه ج۱ ص ۲۴۴ بحواله شامي درمختار ج ۱ ص ۷۲۷»

## په لمانځه کې ترسجده تلاوت وروسته دوهم ځل بياهغه آيت ويل

سوال: په تراويحوکې حافظ صاحب ترسجده تلاوت اداکولووروسته ولاړشو دراتلونکي آيت پرځای يې بيادوهم ځل هغه دسجدې آيت ولوستی نواوس دتلاوت دسجدې دراګرزولواړتياشته اوکنه؟ جواب: په مسئوله صورت کې لومړی سجده کافي ده دراګرزولوضرورت نشته اوسجده سهوه هم نشته «فتاوی رحيميه ج۱ ص ۲۴۴ بحواله عالمګيري ج۱ ص ۱۳۵»

## ترسجده تلاوت اداکولووروسته دحافظ راتلونکی آيت هيرشو

سوال: زيدحافظ دی مونږلمونځ کاوه په مينځ کې دسجدې آيت راغلی نوسمدستي يې دتلاوت سجده اداکړه ترسجده وروسته

بیاولاړشو خو پرمخ قران په یادنه ورتلی زید دتلاوت له سجدې
کولو پرمهال دناپوهی یاهیرید وله امله رکوع هم ونکړه آیازید چې
دتلاوت له سجدې راپورته شي رکوع وکړي که څه وکړي ؟ جواب: په
داسې حالت کې چې په لمانځه کې یې د سجدې آیت تلاوت کړ
او پرمخ څه نه ولولي نو په رکوع کې هم د سجدې د نیت په
کولو دتلاوت سجده اداکیږي او که ده دتلاوت سجده وکړه نو غوره
داده چې ودریږي څو آیتونه ولولي بیا رکوع وکړي او که پورته شي
ولاړشي سمدستي رکوع وکړی نو داهم څه پروانه لري لمونځ صحیح
دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۲ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۷۲۲
باب سجدة التلاوت»

## ترسجده تلاوت وروسته سورة فاتحه دوهم ځل ویل څنګه دي

سوال: په تراویحو کې ترسجده تلاوت کولو وروسته دراتلونکي آیت
پرځای که سورة فاتحه ووایي هغه شروع کړي نو سجده سهوه شته
او کنه ؟ ځکه سورة فاتحه تکرارشوه ؟ جواب: ترسورت شروع
کولو مخکې یې که سورة فاتحه مکرره کړه بیا خو سجده سهوه
وربانديږ راځي ځکه چې ترفاتحه وروسته بیله ځنډیدو سورت پیل
کول واجب وو په هغه کې ځنډ راغلی او دواجب په ځنډیدو سجده
سهوه لازمیږي خو په پوښتل شوي صورت کې کله چې یې ترسورة
فاتحه وروسته قرائت پیل کړی وو نو په سورت یعني قرائت شروع
کولو کې خو ځنډ نه راغلی ترفاتحه وروسته یې سمدستي شروع کړی
راتلونکي فرض درکوع دی دهغه اداکیدل ترقرائت وروسته په



کار ده خو د قرائت کوم حد معلوم نه دی څومره چې وغواړي قرائت دې
ووایي او کوم سورت چې وغواړي هغه دې ولولي تر رکوع مخکې ده
ته د لنډ او اوږد قرائت ویلو اختیار دی په دې کې او په
اوږد او ځنډ سجده سهوه نه لازمیږي لهذا په دې صورت کې سجده
سهوه نشته «فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۳۴۸ بحواله شامی ج ۱ ص ۴۲۹
وعالمگیري ج ۱ ص ۱۲۲»

## دوه رکعته یې پوره کړل په نورو دوه رکعتونو کې یې بیا د سجدې آیت تلاوت کړ

سوال: په تراویحو کې حافظ صاحب د دوو رکعتونو نیت وتاړی په
لومړي یادوهم رکعت کې یې د سجدې آیت ولوست او سجده یې وکړه
دوه رکعته پوره شول بیا یې د نورو دوو رکعتونو نیت وکړ او سهواً یې
بیا هم هغه د سجدې آیت ولوست خو سجده یې ونکړه تر لمانځه
وروسته حافظ وفرمایل چې د لومړي لمانځه د تلاوت سجده د دوهم
لمانځه لپاره کافي ده آیا دا صحیح دي ؟ جواب: په دې صورت کې به
بله سجده کوي د تکبیر تحریمه په ویلو او د بل لمانځه په شروع
کولو حکماً مجلس بدلیږي همدارنګه په مراقی الفلاح کې راغلي
چې که یې په لمانځه کې د سجدې آیت تلاوت کړ سجده یې وکړه
بیا یې هم هغه آیت ترسلام ګرزولو وروسته دوهم ځل ولوست
نو ظاهرروایت سره سم به بله سجده کوي په لمانځه کې یې چې
کومه سجده کړې وه هغه حکماً باقي نه شوه پاته «فتاوی رحیمیه ج ۴
ص ۴۲۸ بحواله مراقی الفلاح ص ۲۸۲»

## که یې په تراویحو کې سجده تلاوت هیره شي

یوسړی په یوه رکعت کې دسجدې آیت ولوست خو په هغه کې سجده کول ورځینې هیرشول نو په دوهم رکعت کې چې کله ورپه یادشي سجده تلاوت دې اداکړي او بیا په پای کې دې سجده سهوه وکړي که کوم شخص په لمانځه کې دسجدې آیت ولولي نو سمد ستی سجده کول واجب دي که تردریو کوچنی آیتونو یا یوه اوږده آیت وروسته یې دتلاوت سجده وکړه نو سجده سهوه کول واجب ده او که تردریو آیتونو کم ویلو وروسته یې سجده تلاوت وکړه نو بیا سجده سهوه واجب نه ده «مسائل سجده سهوه ص ۵۴ درمختار برحاشیه شامی ج۱ ص ۷۲۱»

## دتلاوت دیوې سجدې کولو پرځای یې دوې سجدې وکړې

سوال: په تراویحو کې حافظ صاحب دسجدې آیت تلاوت کړ دیوې سجدې کولو پرځای یې دوې سجدې وکړې آیا په دې صورت کې ددوو سجدو کولو له امله چې په ولاړه کې ځنډ راغلی سجده سهوه لازمیږي او کنه ؟ که لازمیږي او ده ونکړه نو آیا ددوو رکعتونو راګرزول واجب دي په جماعت سره یې راوګرزوو که یوازې یوازې ؟ جواب: په تراویحو کې دیوې سجدې دزیاتوب په وجه ځنډ راغلی سجده سهوه کول یې غوښتل خو ونه شوه ځکه په وخت کې دننه دراوګرزول شي که چیرته خلک موجودوي کنه یوازې یوازې دادا کړل شي «فتاوی رحیمیه ج۴ ص ۳۸۸»



## دسورة حج آخري سجده او دهغه حکم

سوال: دسورة حج آخري سجده (۱۸ پاره ) دامام شافعي رحمة الله علیه په اند واجب ده دشافعي امام په اقتدا کې حنفي مقتدي دغه سجده اداکړي او کنه ؟ او کله چې امام حنفي وي او مقتدي شافعي نو دمقتدي دغه سجده به څنګه اداکیږي ؟ جواب: په شامي کې راغلي چې دشافعی المذهب امام دپیروي له امله دحنفي مقتدی هم دسورة حج اخري سجده اداکړي او کله چې امام حنفي وي نو دغه سجده دې نه کوي او له مقتدیانو څخه هم داحنافو له قواعدو سره سم دغه سجده ساقطه ده خو که دشوافعو په نزدیې دلمانځه ترسجده وروسته کول جائزوي هغوی یې کولای شي داحنافو په نزدخو چې سجده په لمانځه کې لازمه شي او هغه مهال ونکړله شي نو هغه نشي اداکیدلای «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۴۲۳ بحوال ردالمحتار ج۱ ص۷۲۱ باب سجدة التلاوة»

## په سورة ص کې دتلاوت دسجدې آیت کوم دی

سوال: په سورة ص (۲۳ پاره ) کې دتلاوت سجده پراناب ده که پرحسن ماب ؟ جواب: دمحقق قول په اساس اولی داده چې پرحسن ماب دتلاوت سجده وکړله شي پراناب سجده کول داحتیاط پرخلاف دي که چیرې پراناب سجده وکړله شي نو داحتیاط خلاف کاروشو خو دراګرزولو ضرورت نشته «فتاوی رحیمیه ج۴ ص ۳۸۲ ، ۴۱۹ بحواله شامي ج۱ص ۷۱۲»

## نهم باب

## دتهجداوشبينې په بيان کې

### دتهجد د جماعت حکم

سوال:دروژې په مبارکه مياشت کې چې کوم خلک سره له دې چې حنفي المذهب دي دتهجد دلمانځه په جماعت سره اهتمام کوي اوداوي فضيلت ګڼي ددې په اړه شرعي حکم څه دی؟ جواب: دتهجد دلمانځه په جماعت سره اهتمام په رمضان اونارمضان کې له رسول الله ﷺ او دده مبارک له اصحابو ﷺ څخه منقول نه دی دروژې مبارکې په مياشت کې د رسول الله ﷺ معمول داعتکاف ؤ خوله رسول الله ﷺ څخه داصحابو ﷺ په ملګرې دتهجد لمونځ په جماعت سره ثابت نه دی ځکه نوفقهاؤ ليکلي چې تهجد اونور نفل لمونځونه په جماعت کول مکروه دي خوبې له بلنې له يوه دوه مقتديانوسره مکروه نه دي داپه حديث ثابت دي ځکه نوفقهاؤ ليکلي چې له امام سره په دريو مقتديانو کې اختلاف دی او که څلور مقتديان وي نو په اجماع سره مکروه دی «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۲۳ بحواله ردالمحتارمع شامي ج۱ص ۶۶۴»

### دتهجد جماعت اوشاه صاحب رايه

دبخاري په شرح انوارالباري کې دعلامه انورشاه کشميري قدس سره شاګرد مولاناسيداحمد رضاصاحب بجنوري دامت فيوضهم ليکي چې فقهاؤ ليکلي چې دنفلو جماعت مکروه دی پرته له رمضان اوله دې څخه مراد سنت تراويح دي حضرت شاه کشميري صاحب رحمه الله وفرمايل چې دفقهاؤ له دغه عبارت څخه چې کوم چادرمضان



مطلق نوافل فهمولي دي هغوی غلطي کړې ده ځکه نوتر دريوزياتو څخه دتهجد جماعت دروژې په مياشت کې مکروه کيږي «انوارالباري»

په مبسوط سرخسي کې يې ليکلي که نفلونه په جماعت سره مستحب وای نو دشپې قيام کونکي ټولو تهجد ګزارو مجتهدينو به په دي عمل کړی وای هغه لمونځ کوم چې يوازې او په جماعت دواړو طريقو سره کول جائزدي دهغه په جماعت اداکول افضل دي حال دا چې دنفلو نو تهجداونورو په جماعت اداکول نه خود رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کې منقول دي اونه دصحابه کرام ﷺ اونه دتابعينو اونورو په زمانه کې لهذا اقول چې دتراويحو په رنګه تهجداونورنفلونه دروژې په مياشت کې بيله کراهيته جايزدي داقول دټولو فقهاؤ په خلاف اوباطل دی «مبسوط سرخسئ کتاب التراويح في بحث رکعات التراويح ج ۲ ص ۱۴۴ فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۲۴»

### په روژه کې دتهجد جماعت

سوال:دروژې په مياشت کې دتهجد لمونځ په جماعت سره کول او په هغه کې قران شريف اوريدل په کاردي کنه؟ جواب:په تداعي (تردووکسانوزياتوسره ) دتهجد لمونځ په جماعت کول مکروه دي رسول الله ﷺ چې دروژې دمياشتې په دريوشپوکې په جماعت کوم لمونځ کړی هغه دتراويحو لمونځ ؤ دعلامه شامي رحمه الله له تحقيق څخه هم همدا څرګنديږي اومولانارشيداحمد ګنګوهي رحمه الله په خپله رساله تراويح کې داتحقيق کړی چې دواړه لمونځونه جلادي اورسول الله ﷺ تهجدتل يوازې کاوه هيڅکله يې هم په تداعي سره جماعت نه

دی فرمایلي (دجماعت لپاره یې چاته بلنه نه ده ورکړې ) او داچې
دتهجد په لمانځه کې جماعت نشته همدغه له زیاتره
احادیثو ثابتیږي او حنفي فقهاؤ او علماؤ هم همدغه تحقیق فرمایلی.
دروژې مبارکې په میاشت کې په تداعي دوترو او تراویحو جماعت
جائز مشروع او مسنون دی نور نفلونه پرته له تراویحو په رمضان کې
هم په تداعي سره مکروه دي او د تداعي معنی صاحب
ددرمختار داسې بیان کړې یعني څلور مقتدیان په یوه امام پسې
لمونځ اداکړي «دتهجد جماعت بې له تداعي جائز او له تداعي سره
تحریمي مکروه دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۱ ، ۲۲۳ بحواله
ردالمحتار باب الوتر والنوافل مبحث التراویح ج ۱ ص ۶۶۳ »

## دروژې په میاشت کې په تهجد کې دوه یا څلور کسه سره یو ځای شي نو...

سوال: که چیرې یو سړی په روژه کې تهجد شروع کړي او له ده سره
صرف دوه یا څلور وګړي اقتداء وکړي نو څه حکم دی ؟ جواب: دیوه
یادوو اقتداء بیله کراهیته جائزده او په دریو کې اختلاف دی تر دې
زیات مکروه دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۳ »

## دتهجد د جماعت حکم

سوال: تهجد لمونځ په جماعت سره وکړو که یوازې ؟ دکتابونو په
حواله جواب راته ولیکی ؟جواب: که چیرې کله ناکله دوه یا درې
کسان کوم چې بیله بلنې او بیله کوم اهتمام راغونډ شي که یې هغوی
په جماعت سره وکړي نو مکروه نه دی له امام پرته که دوه مقتدیان



وي نو په اتفاق سره بیا مکروه نه دی که درې وي نو اختلاف دی او که
څلور وي نو په اتفاق سره مکروه دی «فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۱۷۷ »

## دنفلونو جماعت او ددیوبند اکابر علماء

په دې اړه د سید الفقهاء رئیس المحدثین فقیه النفس حضرت مولانا
رشید احمد ګنګوهی قدس سره فتوی په فتاوی رشیدیه کې داډول
ده دنفلونو جماعت که تهجد وي او که غیر د تهجد وي پرته له
تراویحو ، کسوف او استسقاء که څلور مقتدیان وي نو د احنافو په
نزد تحریمي مکروه دي که په خپله راغونډ شوي وي او که په بلنه
راغلي وي او په دریو کې اختلاف دی او په دوو کې کراهیت نشته
«فتاوی رشیدیه ص ۲۹۹ »
حضرت تهانوی رحمه الله په امداد الفتاوی کې فرمایلي که چیرې
مقتدیان یو یا دوه وي نو مکروه والی نشته او که څلور وي نو مکروه
او که درې وي نو اختلاف دی «امداد الفتاوی ج ۱ ص ۳۷۷
حضرت تهانوي رحمه الله دهغه خلکو په رد کې چې دفقهاؤ له
ځینو اقوالو څخه دا فهموي چې دا کراهیت دروژې د میاشتې نه په
ماسیوا کې دی او په روژه کې جائز دی داسې ویلي: چې دفی غیر
شهر رمضان له قید څخه صرف د تراویحو نفل ایستل مقصد دي
«امداد الفتاوی ج ۱ ص ۳۲۸ ځکه نو معلومه شوه چې دنفلو جماعت
په رمضان او نارمضان ټولو کې مکروه دی حضرت شیخ الهند رحمه الله
ته دروژې په میاشت کې په نفلونو کې دقران داوریدلو ډیر زیات شوق
و کله چې خلکو په جماعت کې دبرخې اخیستلو خواهش څرګند کړ
اجازه یې ورنکړه او دکور دروازه یې وتړله دننه دحافظ کفایت الله په

اقتداکې یې قران کریم اوریدی بیاچې دخلکو ټینګارزیات،
شونودامعمول یې جوړکړچې ترفرض لمانځه وروسته به له مسجد
بهرراووتی ترڅه وخت آرام کولووروسته به یې ټوله شپه په
تراویحوکې قران کریم اوریدی چې څلو پښتو پنځوسو کسانو په کې
برخه اخیسته اوپه کورکې جماعت کیدی لیکن دنفلوجماعت یې
منظورنکړ دحضرت علامه انورشاه کشمیري رحمه الله علیه همدغه رایه ده
په انوارالباري دوهم ټوک ص ۸۸ کې په پوره تفصیل سره څیړنه
وجودلري حضرت شیخ المشائخ مولاناخلیل احمدصاحب دقران
حافظ ؤاوپه تهجدکې به یې دقران تلاوت کاوو دووحافظانوبه دده
شاته قران کریم اوریدی دحضرت مولانااسعدالله صاحب وینا ده چې
یوه شپه زه ـم مقتدی شوم نوحضرت ترلمانځه وروسته زه
ترغوږونیولم جلا یې کړم ۱۲ «انوارالباري ج ۲ ص ۸۷»

## مولانامدني ددیوبند داکابروپه خلاف ولې عمل خپل کړ

دحضرت شیخ العرب والعجم مرجع الخلائق حضرت شیخ الاسلام
مولانا حسین احمدمدني رحمه الله علیه په جماعت سره دتهجد معمول
ددیوبندله ټولواکابروجلاؤ سوال دارامنځته کیږي چې حضرت
مدني رحمه الله علیه دخپل وخت سترعالم اوپه تقوی اوتصوف کې یې
لوړمقام درلود هغوی ددیوبندداکابرواوفقهاؤپه خلاف ولې عمل
خپل کړ؟ ددې په ځواب کې دوې خبرې زمونږ په فهم کې راځي: ۱
کوموبختوروبزرګانوته چې الله تعالی په علم کې پوره ژورتیاورکړې
دهغوی لپاره په ځینې جزئي مسئلوکې دانفرادي رائې قائمولوحق
وي خوهغه عمل دنورولپاره دحجت وړنه وي یوازې دهغه ترذات



پوري محدودوي لکه چې دعلامه جمال الدین ابن همام رحمه الله علیه
دتفرداتو په اړه مشهوره ده چې دهغه ځانګړي شاګرد علامه قاسم بن
قطلوبغاء فرمایلي چې زمونږ دااستاذ هغه تفردات کوم چې دامت
داجماع په خلاف دي هغه دعمل قابل نه دي ځکه ځینونښاغلیوورته
وویل: چې ستاسو دغه عمل (دتهجد جماعت) به خلک سند جوړوي
حضرت مدني رحمه الله علیه ورته وفرمایل: چې زه خویې په خپله کوم
امانوروته خونه وایم «انوارالباري شرح بخاري»
۲ یوباب احکام وی اویوباب تربیت وي اوپه باب تربیت کې دداسې
خبروګنجائش شته کومې چې په ظاهره له باب احکام مخالفې وي
نوزمونږ حسن ظن هم دمولانا مدني رحمه الله علیه په اړه همدغه دی چې
دسالکینو(مریدانو) دتهجد دعادي جوړولو لپاره دتربیت په توګه
یې دتهجد لمونځ په جماعت کاوو اوداعمل دکوم بل چالپاره باعث
دحجت نشي کیدای په هرحال مسئله پرخپل ځای ده چې که
یومقتدي وي نوجائزپه دووکې هم جوازشته اوکه چیرې درې
مقتدیان وونوپه دې کښې دځینې فقهاؤ خیال دنه مکروهیت دی
اودځینوخیال دکراهیت دی «شامي چاپ ماجدیه پاکستانی ج ۱ ص
۵۲۴»
اوکه چیرته مقتدیان څلورشي نوپه اتفاق سره مکروه تحریمی دي
«طحطاوي علی مراقی الفلاح ص ۲۱۱»

## په تهجد کې که ځينې خلک دامام اقتداء وکړي نود کراهيت ذمه وار څوک دی

سوال: امام دقران کريم حافظ دی په اعتکاف کې کښيني په اوس وخت په تهجد کې درې سپارې وايي اونوردوه معتکفان يې مقتديان وي خو کله ناکله نور خلک هم ورسره شريکان شي آيا څه پرواخو به نه لري ؟ که لري يې نو ددې ذمه وار څوک دی ؟ جواب: که چيرې دامام دصراحتا يا کنايتاً يا اشارةً اجازې پرته خلک ورشريک شول نو هغوی دکراهيت ذمه واردي خو امام ته په کاردي چې مسئله وروښيي اوله شريکيدويې منعه کړي کنه دکراهيت له ذمه وارۍ څخه دامام اوږې نه سپکيږي په شامی کې راغلي چې دنفل کونکيو يوياد وه کسانو اقتداء وکړه بيانور خلک راغلل نو علامه رحمه الله فرمايي چې دکراهيت ذمه وار وروسته راتلونکي دي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۲۵ بحواله شامي ج ۱ ص ۶۶۴»

## شبينه يعني په يوه شپه کې قران ختمول څنګه دي

سوال: دشبينې څه طريقه ده يعني قران کريم په يوه شپه کې بايد ختم کړل شي که په دريو شپو کې اوپه څومره رکعتونو کې ختم کړل شي؟ په شلو کې که له دې څخه په زياتو کې ؟ جواب: په اوس زمانه کې دغه رواجي شبينه له کراهيت اوناوړتيا پاکه نه ده يوه ناوړتيا داده چې دنفلو جماعت کيږي حال دا چې که دنفلو په جماعت کې تر دوو درې زيات مقتديان وي نو تحريمي مکروه دي اما په تراويحو کې صحيح دي په دې شرط چې قران کريم صفا صحيح وويل شي ريا کاري او نوم مقصد نه وي او مقتديان سست نه وي او که څه خلک ناست وي خبرې



کوي دخوراک څښاک په نظم بوخت وي چې په نتيجه کې تراويح ورځينې فوت شي نو جائزنه دي په اوس زمانه کې به داسې حافظان چيرې وي چې ټول قران صفا او په صحيح ادا ينه په يوه شپه کې ختم کړي له يعملون تعلمون پرته هيڅ نه فهميږي په دې ډول حافظانو تردريو ورځو په کم کې دقران کريم ختمول له کراهيت خلاص نه دي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۸۷»

## شبينه جائزده کنه ؟

سوال: په يوه ورځ دڅو حافظانو په شبينه کې دقران کريم ختمول صحيح دي او کنه ؟ جواب: قران کريم داسې چټک اوپه بيړه ويل چې حروف نه فهميږي او په مخارجو کې ادا ينه نه وي ناجائزدی نو که په شبينه کې داسې بيړه وي نو هغه هم ناجائزده لکه چې په درمختار کې دي... «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۵۲ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۳» غوره داده چې يو ياد وه حافظان په ګډه تراويح ورکړي که چيرې جيدا و همتي حافظان نه ؤ نو بيا که څو حافظان په ګډه تراويح ورکړي نوداهم صحيح دي تراويح صحيح کيږي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۸۹»

## دنفلو په جماعت کې شبينه کول څنګه دي

سوال: که چيرې دشبينې ختم دنفلو په جماعت کې وشي نو جائزدي او کنه ؟ جواب: که شبينه يعني ختم دقران دنفلو په جماعت کې وي نودا مکروه دي يعني ناجائزدي ځکه چې دنفلو جماعت په تداعي سره مکروه دی او له مکروه څخه مراد تحريمي مکروه دي کوم چې حراموته نږدې دي نو دې ته ناجائز ويل صحيح شو او د تداعي

تفسیردادی چې څلورمقتدیان وي اوپه دریوکې اختلاف دی
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۸۴ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۳»

## دشبینې قاعده کلیه

سوال: په شبینه کې یوحافظ ختم وکړي اوکه څوحافظان په ګډه ختم وکړي؟ جواب: که په شبینه کې قران کریم صاف وویل شي، دحافظ مقصدریانه وي چې فلانی دومره ووایو اوفلاني دومره ووایو، په جماعت کې کهالتیا نه وي، تراړتیازیات دڼاکولوتکلف نه وي اومقصدصرف دثواب حاصول وي نوجائزدي اوکه قرائت دومره په بیړه وایي چې په حروفو هم سړی نه پوهیږي نه په زیرخبرنه په زبر، نه غلطي ته فکراونه متشابه ته فقط ریااونوم مقصدوي اوجماعت هم شیندلی وي یاتراړتیازیاته ړناوي یاترتراویحوکولووروسته دنفلوجماعت کوي نوبې شکه چې دامکروه دي لقوله تعالی وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا لقوله تعالی اذاقاموا الی الصلاة قاموا کسالی یراءون الناس لقوله تعالی ان الله لایحب المسرفین ولقول الفقهاء ان جماعة النوافل مکروهة.

شبینه په دریوشرطونوروا ده: ترتیل به نه پاتیږي ۲ په تراویحوکې به یې وایي ۳ دجماعت تروخت به وروسته والی نه کوي (امدادالفتاوی ج ۱ ب ص ۴۸۷، ۴۸۹»

## دشبینې په اړه دمولانارشیداحمدګنګوهی فتوی

دقران کریم په یوه شپه کې ختمول دصحیح الفاظوویلواونوروپه صورت کې جائزدي اوله حضرت عثمان رضی الله عنه په یوه شپه کې ختمول ثابت دي اوکه چیرې قران په ترتیل سره ونه لوستل شي خوالفاظ



صحیح وویل شی نوپه دارنګه ویلوثواب کمیږي اوکه دشهرت اونوم په نیت یې ووایی نوریاخوپه فرضوکې هم منع ده پرتراویحوکې به څه موقوفه وي اوکه مقتدیانوته دارنګه کول ګران وي نونه یې دې کوي «فتاوی رشیدیه کامل ص ۲۹۹»

## لسم باب

## دختم په ورځ دبیلابیلورواجونوپه بیان کښې

## په کومه ورځ ختم وکړو

له صحیح مذهب سره سم دروژې په میاشت کې یوځل ختم کول سنت دي همدارنګه د ۲۷ م په شپه ختم کول مستحب دي «اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص ۱۱۲»

## دختم په ورځ درې ځله قل هوالله ویل څنګه دي

سوال: ځینې حافظان دختم په ورځ سورة اخلاص درې ځله وایي ایاداجائزدي؟ که نه دی جائزنودکراهیت لامل څه دی دسورت تکرارول که رواج؟ جواب: درې ځله قل هوالله ویل مکروه نه دي خودالازم ګڼل مکروه دي پردې التزام بایدونه شي دغه التزام اوټینګارچې کوم خلکوخپل کړی دا دکراهیت یوځانګړی دلیل دی ځکه عوامودالازم ختم بللی دی لکه له طرز څخه چې څرګندیږي ځکه نومکروه دی نه داچې دسورة تکرارول فی نفسه مکروه دي دسورة تکرارول فی نفسه که جائزشي اوکه مکروه خودغه رسم اورواج دترک وړدی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۹۰ وحاشیه امدادالفتاوی ج ۱ ص ۲۹۲»

## دسورة اخلاص په اړه دمولاناتهانوی رحمه الله فتوی

سوال: په اخرنيوتراويحوکې دسورة اخلاص درې ځله ويل څنګه دي؟ دکراهيت څه لامل دی يعني دمکررويلوپه وجه کراهت دی که درواج په وجه؟ جواب: دعالمګيري له روايت څخه معلوميږي چې دسورة اوآيت دتکرارېوحکم دی او په نفلوکې دآيت مکررويل مکروه والی نه لري په الَّذِي يُصَلِّي وَحْدَهُ سره دمقيد کيدوڅخه څرګنديږي چې په نفلوکې په مکررويلو له کراهت نه راتلوڅخه هم هغه نفل مراددي کوم چې يوازې اداکړل شي اودتراويحولمونځ کوم چې دفرضوپه څيرپه جماعت سره کيږي هغه دفرضوپه حکم دی ځکه نودفرضوپه رنګه په تراويحوکې هم دسورت تکرارمکروه کيږي پرته له دې دغه ډول التزام اوټينګارکوم چې خلکوخپل کړی داهم دکراهت مستقل دليل دی دلومړي دليل تقاضادتنزيهي کراهت ده اوددوهم دتحريمي کراهت ده «امدادالفتاوی ج۱ص ۴۹۴»

## له ځينوسورتونوورو سته له قران پرته نورالفاظ ويل څنګه دي

سوال: په تراويحوکې حافظ صاحب دځينوسورتونوپه پای کې په لمانځه کې دننه له قران پرته ځينې الفاظ په عربي کې وايي دمثال په ډول دسورة مرسلات تراخري آيت فَبِاَیِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُوْنَ وروسته اٰمَنَّا بِاللهِ وايي په دې لمونځ فاسديږي اوکنه؟ جواب: احناف په دې ډول دعاګانې په لمانځه کې ويل منعه کوي خوکه په نفلوکې داسې وکړل شي نولمونځ نه فاسديږي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۲۷۸ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۵۰۹ باب صفة الصلاة»



## دختم په ورځ نورآيتونه ويل څنګه دي

سوال: دروژې په مياشت کې حافظ صاحب په ۱۹ رکعتونوکې قران کريم ختموي اوپه شلم رکعت کې له الم څخه ترمفلحون پورې يې وايي بياپه همدغه رکعت کې دغه آيتونه اِنَّ رَحْمَةَ اللهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ اودَعْوٰاهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَکَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ الخ وايي بيارکوع ته ځي داجائزدي که بدعت؟ جواب: داخوپه ځينې رواياتوکې راغلي دي چې دقران ترختميدو وروسته له الم څخه ترمفلحون پورې دې وويل شي او فقهاؤهم ددې اجازه کړې اودايې مستحب بللي دي اوله دې پرته نورآيتونه ويل منقول نه دي ځکه دهغوی پريښودل مناسب دي دفتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۲۷۵ پرحاشيه باندې ددرمختارپه حواله يې دغه صورت ته مکروه ويلي اوليکلي يې دي چې پرشلم رکعت دې ترسورة فاتحه وروسته دسورة بقره څه برخه ترمفلحون پورې ووايي ځکه چې درسول الله ﷺ فرمان دی «خَيْرُ النَّاسِ الْحَالُ الْمُرْتَحِلُ اَیِ الْخَاتِمُ الْمُفْتَتِحُ» په خلکوکې ترټولوغوره هغه دی چې ودريږي بيامخته روان شي يعنی قران کريم ختم کړي بيايې شروع کړي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۲۷۵»

## دختم په ورځ ترمفلحون پورې ويل څنګه دي

سوال: حضرت مولاناعبدالحی صاحب په تراويحوکې ترمفلحون پورې ختمول جائزليکلي دي يعني چې کله قران کريم ختم کړي نوپه آخري رکعت کې له الم څخه ترمفلحون پورې يې ووايي اوپه فتاوی عالمګيري کې هم دختم ترتيب ترمفلحون پورې ليکل شوی صحيح په دې اړه څه دي اوله يوآيت څخه بل آيت ته اوښتل څنګه دي

ځینو خلکو ترمفلحون پورې ویلو ته مکروه ویلي دي ؟ جواب: کوم ځه
چې مولانا عبدالحی صاحب په دې لړکې لیکلي دي هم هغه صحیح
دي د احنافو فقهاؤ هم په ختم کې صرف دغه مستحب لیکلي دي چې
د سورة بقره پر لومړنیو آیتونو یې ختم کړی ځکه چې دا په حدیث ثابت
دي له دې پرته له بیلا بیلو ځایونو څخه ویلو ته یې مکروهٔ ویلي دي
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۰ بحواله شرح منیه کبیري ورد المحتار
ج ۱ ص ۵۱۰ باب صفة الصلاة»

## دختم په ورځ یې باید څرنګه ووایو

سوال: په تراویحو کې د قران د ختم پر موقع له
آخرنیو دوو رکعتونو څخه په لومړي رکعت کې سورة فلق او په دوهم
رکعت کې سورة الناس او له آلم څخه ترمفلحون پورې که فاتحه
ووایي آیا دا ثبوت لري ؟ جواب: په تراویحو کې د قران کریم د ختم
پر مهال په نولسم رکعت کې سورة فاتحه او معوذتین «سورة الفلق
او سورة الناس» ویل او په شلم رکعت کې سورة فاتحه او د سورة بقره
څه برخه «ترمفلحون پورې» ویل مستحب دي دا په حدیث هم ثابت
دي د رسول الله ﷺ ارشاد دی خیر الناس الحال المرتحل ای الخاتم
المفتتح » ژباړه: په خلکو کې تر ټولو غوره هغه څوک دی چې ودریږي
بیا مخته روان شي یعني قران کریم ختم کړي بیا یې شروع کړي دا چې
خینې ځایونه رواج دی چې په شلم رکعت کې درې ځله سورة اخلاص
، سورة الناس او سورة بقره ترمفلحون پورې او نورې دعاګانې وایي
دا په صحیح طریقه ثابت نه دي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۸۴»



## د حضرت مولانا مفتی کفایت الله صاحب فتوی

د قران کریم تر ختم وروسته د سورة بقره اولني آیتونه لوستل مسنون
دي بیا که په شلم رکعت کې تر سورة الناس وروسته یې وایي او که په
نولسم رکعت کې تر ناس پورې یې وایي په شلم کې یې له اخر څخه
ووایي – خو په شلم رکعت کې تر الحمد لله او معوذتین ویلو وروسته
بیا سورة فاتحه او د آلم آیتونه ویل ندي په کار یعني د الحمد لله تکرار
هیڅ معنی نه لري «کفایت المفتی ج ۳ ص ۳۴۸»

## ترسنتو او نفلو وروسته دعا په انفرادي توګه که په اجتماعي

سوال: ترسنتو او نفلو وروسته دعا کول په کار ده او کنه ؟ که ترسلام
ګرزولو وروسته تلل په کار دي که کوم شخص ترسنتو او نفلو وروسته
دعا ونکړي او همدغسې ولاړ شي نو د ملامتولو وړ دی کنه ؟ جواب:
ترفرضو وروسته په دعا کولو بیلیدل په کار دي د سنتو او نفلو وروسته
په ټولنیزه ول د دعا کولو لپاره باید مقتدي پابند نکړل شي
ترفرضو وروسته مثلاً یو سړی کورته ځي هلته سنت کول غواړي
نو هغه دولي پابند کړل شي لنډه دا چې څوک داسې وکړي هغه
د ملامتیا وړ نه دی ترسنتو او نفلو وروسته هر سړی چې فارغ شي
دعا دې کوي ځي دې یا دې ترفرضو وروسته کورته لاړ شي هم هلته دې
سنت وکړي په دې کې هیڅ تنګي نه ده په کار «فتاوی دارالعلوم ج ۴
ص ۲۱۲»

## د قران له ختمیدو وروسته دعا

سوال: په جماعت سره د قران د ختمیدو پر مهال دعا کول مکروه دي
ځکه چې دا رنګه دعا کول له رسول الله ﷺ څخه منقول نه دي

آیا صحیح ده ؟ جواب: صحیح داده چې دقران ترختم وروسته
همیشه دتراویحو ترلمانځه وروسته دعا سنت او مستحب ده او په
حدیث کې راغلي دي چې دغه وخت د دعا قبلیدو دی ځکه زمونږ
داکابرو او مشائخو ترتراویح او ختم قران وروسته د دعا معمول دی
«فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۷۱ بحواله مشکواة ص ۸۸»
له حضرت عرباض بن ساریه ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ
وفرمایل: کوم بنده چې فرض لمونځ وکړي او تر هغه وروسته له زړه
دعا وکړي نو دهغه دعا هم قبلیږي همدا رنګه کوم څوک چې قران ختم
کړي او دعا وکړي نو دهغه دعا هم قبلیږي «معارف الحدیث ج ۵ ص
۱۳۸»

## ترتراویح او وترو وروسته دعا کول څنګه دي

سوال: ترتراویحو وروسته دعا کول جائزدي او کنه ؟ او د روژې په
میاشت کې تر وترو وروسته دعا غوښتل ثابت دي او کنه ؟ جواب:
دتراویحو پرختمیدو دعا غوښتل صحیح او مستحب دي
او دسلفو او خلفو معمول دی بیا تر وترو وروسته دعا ضروري نه ده
یو ځل کفایت کوي یعنی دتراویحو ترختمیدو وروسته «فتاوی
دار العلوم ج ۴ ص ۲۵۳»

## له سلام وروسته بیله دعا مقتدي تللای شي

سوال: مقتدي باید له امام سره په دعا کې برخه واخلي او که د وخت
لحاظ وکړي ؟ جواب: که مقتدي ته کوم ضرورت دی او کوم ضروري
کار ورپیښ دی نو ترسلام سمدستي وروسته تلل هیڅ ګناه نه لري
[illegible]ه ته بد ویل نه دي په کار او که پر دعا ختمیدو انتظار وکړي او د امام



سره په دعا کې شریک شي نو دا ښه دي او په کښې زیات ثواب دی
«فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۰۳ بحواله درمختار ج ۱ ص ۴۹۵ باب
صفة الصلاة»

## ترلمانځه وروسته دعا سوکه وغواړي که په زوره

سوال: دفرض لمانځه ترجماعت وروسته دعا سوکه غوښتل کیږي که
په زوره که د سوکه والي حکم دی نو په څومره اندازه او که په زوره
غوښتلو حکم دی نو په څومره اندازه په دواړو کې کومه طریقه غوره
ده ؟ جواب: سوکه دعا کول غوره دي که لمونځ کونکیو ته حرج نه وي
نو که کله ناکله یې په زوره وکړي جائزدي همیشه په زوره دعا غوښتل
عادت جوړول مکروه دي د دعاګانو له روایتونو هم جهر «په زوروالی»
ثابت نه دی «فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۱۸۳»

## امام که په زوره دعا کوي نو د ځان لپاره د الفاظ نه خاصوي

امام دي د دعا الفاظ له ځان سره نه خاصوي که هغه په زوره دعا کوي
لکه ای الله ! پر ما او پر نبي کریم ﷺ رحم وکړه او زما پر ملګرو رحم مه
کوه په دې ډول دعا کول خیانت دی په احادیثو کې چې کوم منفرد
الفاظ راغلي دي هغه په دې کښې داخل نه دي ځکه چې په لمانځه
کې له امام څخه کومه ګټه رسي په هغه کې مقتدیانو ته هم برخه
ورکول کیږي ځکه چې امام د مقتدیانو نمائنده وي او که سوکه
دعا کوي نو امام ته اجازه ده چې د ځان لپاره خاص دعا وکړي (نوروته
دي دښیرانه کوي ) ځکه چې مقتدیان هم دخپلو ځانو لپاره دعا کوي
په دې ډول به په نفس دعا کې ټول شریک شي «معارف مدینه ج ۶ ص
۱۰۰»

## آيا دعا دلمانځه جزء ده

سوال: امام دعا سو که وکړي که په زوره او همدارنګه دعا دلمانځه جزء ده او کنه؟ جواب: دعاء سو که غوښتل افضل دي که مقصد د دعا تعليم وي نو په لوړ آواز هم پروانه لري خو په دغه لوړ آواز به د نورو لمونځ کونکيو په لمانځه کې خلل نه وي لمونځ په سلام سره پای ته رسيږي تردې وروسته دعا دلمانځه جزء نه ده «فتاوی محموديه ج ۲ ص. ۱۷۳»

## په دعا کې چيرې کتل په کار دي

د دعا غوښتلو پروخت د آسمان پر لور کتل د دعا هغه ناخوښه صورت ده چې رسول الله ﷺ ورڅخه منعه کړيده ځکه چې دغه صورت د الله ﷻ داداب او درناوي او د دعا غوښتونکي لپاره ورته ده کيدلای شي دغه حرکت بې ادبي او سپکاوی وګرځي او د دعاله قبليدو څخه بې برخې شي نو ځکه له دې څخه بايد ځان وژغورو «حصن حصين ۲۷

## دعا په يقين سره کول په کار ده

له حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چې نبی کريم ﷺ وفرمايل: چې کله له الله ﷻ څخه څه غواړئ او دعا کوئ نو په دې يقين سره يې غواړئ چې هغه به يې ضرور قبلوي يوه شئ او په يادساتئ چې الله ﷻ دهغه چا دعانه قبلوي چې دهغه زړه د دعا په مهال له الله ﷻ څخه غافل او بې پروا وي «معارف الحديث ج ۵ ص ۱۲۳ بحواله جامع ترمذی وصحيح بخاري ومسلم»

رسول الله ﷺ وفرمايل: زمونږ دعاګانې ترهغو قبليږي ترڅو له تلوارڅخه کاروانه خستل شي تلوار او بيړه داده چې بنده داويل پيل



کړي چې ما دعا کړې وه خو قبوله هم نه شوه «معارف الحديث ج ۵ ص ۱۲۵»

## د دعا طريقه

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنهما د رسول الله ﷺ فرمان نقلوي چې ده مبارک ﷺ وفرمايل: له الله ﷻ څخه په داسې ډول لاس پورته کولو دعا غواړئ چې دور غوومخ مومخ طرف ته وي لاسونه چپه مه نيسئ او کله چې دعا ختمه کړی نو لاسونه پورته کړئ او پرمخ يې راتير کړئ د رسول الله ﷺ طريقه وه چې کله به ده مبارک ﷺ په لاس ته کولو دعا غوښته نو په پای کې به يې خپل مبارک لاسونه پرخپل مبارک مخ راتيرول «معارف الحديث ج ۵ ص ۱۳۱»

## په دعا کې لاسونه ترکومې اندازې پورته کيږي

يوه کس په دعا کې ترسينې پورته لاسونه نيولي و وحضرت ابن عمر ؓ چې وليد نو دبدعت والي فتوی يې ورکړه په دليل کې يې وفرمايل: چې رسول الله ﷺ مې د دعا پر مهال (پرته له کومې ځانګړې موقع) ترسينې لوړ په لاس پورته کولو نه دی ليدلی له دې څخه معلومه شوه کوم کسان چې بې له کومې وجهې لاسونه ترسينې لوړ نيسي دا دسنت خلاف دی «فتاوی رحيميه ج ۱ ص ۳۰۲ بحواله مشکواة شريف ص ۱۹۲»

## له دعا وروسته آمين ويل

له حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چې يوه شپه مونږ د رسول الله ﷺ سره بهرته ووتو مونږ د الله ﷻ ديوه نيک بنده سره تيرشوو چې په ډيروزاريو او عاجزی يې له الله ﷻ څخه دعا غوښتله رسول الله ﷺ

دده ددعا د الله ﷻ له حضور څخه دغوښتنې او دده د ژړا او ریدو لپاره ودرید بیا رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمایل: که ده دعا په صحیح ډول ختمه کړه او تا په یې سمه وربانديږ و هله نو کوم څه چې ده غوښتل دهغه پریکړه یې وربانديږ وکړه له مونږ څخه یوه پوښتنه وکړه چې ای د الله رسوله! دصحیح ختمولو او تاپه وربانديږ لګولو څه طریقه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: په پای کې دې په آمین ویلو دعا ختمه کړي نو که چیرې ده داسې وکړل نو بس په الله ﷻ یې فیصله وکړه «معارف الحدیث ج ۵ ص ۱۳۳»

## له دعا وروسته پرمخ لاسونه تیرول څنګه دي

سوال: تر دعا ختمولو وروسته لاسونه پر مخ تیروي پر مخ د لاسونو تیرولو څه لامل دی؟ جواب: د دعا په پای کې پر مخ لاسونه را تیرول صحیح او ثابت دي او د برکت حاصلولو لپاره دا فعل کول کیږي «فتاوی رشیدیه کامل ص ۲۱۰»

## د روژې په میاشت کې مسجد ښائسته کول

سوال: د روژې مبارکې په میاشت کې تراړتیا زیات څراغونه ډیوې او رڼاوې کیږي او داکاریو لوی ثواب ګڼل کیږي د دې حکم څه دی؟ جواب: د روژې په میاشت کې په تراویحو کې همیشه لمونځ کونکي زیات وي که دهغوی د راحت او هوساییی لپاره د اړتیا سره سم په رڼاکې څه زیاتوب وکړل شي نو جائز او مستحب دي هو صرف د مسجد د ښائسته کولو لپاره تر حد زیاته رڼا کول ناجائز او کلک منعه دي چې په دې کښې له اسراف سره سره د دیوالي (دهنډوانو د دود او رواج) سره مشابهت دی او د مجوسیانو



(د اور عبادت کونکیو) د شعار څرګندونه او تائید لازمیږي او مسجد د تماشې ځای ګرځي د شرعې په خلاف کارونو سره د مسجد ښکلا نه زیاتیږي بلکه سپکاوی یې راځي د مسجد زینت او ښایست د ده په پاک ساتلو، خوشبویه کولو همدارنګه د لمونځ کونکیو په زیاتوب، په ښو جامو اغوستلو، په خوشبویي لګولو، په خشوع او عاجزی سره لمونځ کولو او په ادب سره کیناستلو کې دی «فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۰»

## د قران کریم د ختم په ورځ حافظ ته امیل ورپه غاړه کول

سوال: زمونږ په مسجد کې چې په کومه شپه تراویح ختمیږي په هغه شپه د حافظ د عزت او درناوي لپاره حافظ ته د ګلونو امیل ورپه غاړه کوي دا کار څنګه دی؟ آیا د دې ثبوت په کوم کتاب کې شته؟ زه حافظ یم او سږ کال ما تراویح ورکړې او اعتکاف مې هم وکړ زما دا خوښه نه ده آیا زه ورته ووایم چې د امیل په غاړه کولو سره زما اعتکاف فاسدیږي د داسې دروغو په ویلو سره د امیل له په غاړه کولو څخه انکار کولای شم او که نه؟ جواب: د قران د ختم په شپه حافظ ته د ګلونو غاړګۍ ورپه غاړه کول بدرواج او د پریښودلو وړ دی او په دې کښې اسراف هم دی که د حافظ درناوی او عزت مقصود وي نو هغه ته عربي دستمال یا شال ولې نه ورپه سر کوي؟ تاسو چې امیل په غاړه کول نه غواړئ د دروغو ویلو اجازه نشته بلکه صفا دې ورته وویل شي چې زما دا رواج خوښ نه دی او دا د شریعت په خلاف دی «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۴۲۲»

## د تراويحو پر ختميدو شيريني ويشل

سوال: په روژه کې د تراويحو پر ختميدو شريني ويشل څنګه دي ؟۲
آيا شريني صرف ديو کس له طرفه په کار ده ؟ او شريني په مسجد کې
دننه ويشلای شي ؟ جواب: شريني ويشل ضروري نه دي
خلکو دا ضروري ګڼلې ده او په ډېره په پابندی سره دا عمل ترسره
کيږي خلک پر چنده ورکولو مجبوره کيږي په مسجدونو کې
د ماشومانو غونډه غال مغال او د نورو لانجو رامخته کيدو له امله دغه
رواج ختمول غوره دي که د تراويحو امام او يا کوم بل څوک د قرآن
ختم په خوشحالي کې کله ناکله شريني وويشي او د مسجد د رناوی
په پام کې ونيول شي چې د مسجد فرش پليت نشي وچ شی وي
او د مسجد بې حرمتي لازمه نه شي نو صحيح دي غوره داده چې
پر دروازه وويشل شي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۸۹»

## يوولسم باب

## دلماخوستن دلمانځه مسئلي

### که چا دلماخوستن لمونځ بې اودسه وکړ

که چا دلماخستن لمونځ بې اودسه کړی ؤ او تراويح اووتريې په
اودسه وکړل نو له لماخستن سره د تراويح راوګرزوي او وتردې نه
راګرزوي ځکه چې تراويح د امام اعظم رحمه الله په نزد دلماخستن تابع
دي او وتر په خپل وخت کې دلماخستن تابع نه دي او دلماخستن
دلمانځه پر هغه مخته کول د ترتيب په وجه واجب دي او د هيريدو په
عذر ترتيب ساقطيږي نو که په هيرولو وتر دلماخستن ترلمانځه
مخکې وکړي صحيح کيږي او تراويح که دلماخستن ترلمانځه



مخکې وکړي نو نه صحيح کيږي ځکه چې د تراويحو وخت
دلماخستن دلمانځه تر اداکولو وروسته دی نو کومې يې چې
ترلماخستن مخکې وکړي هغه ته اعتبار نشته «ترجمه فتاوی
عالمګيري ج ۱ ص ۱۸۵»

### آيا دلماخستن فرض بې اودسه او وتر په اوداسه کونکی به سنت راګرزوي

سوال: که په هيره يې دلماخستن فرض بې اودسه سنت او وتريې په
اوداسه وکړل او په وخت کې دننه ورپه ياد شول نو له فرض سره
بايد سنت راوګرزوي او وتردې نه راګرزوي دا د امام صاحب مذهب
دی او د صاحبينو (امام ابويوسف او امام محمد صاحب) په نزد به
وتر هم راګرزوي د دې وجه څه ده ؟ جواب: دا مسئله په وخت کې دننه
ده د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د سنتو د راګرزولو او وترونه
راګرزولو وجه داده چې دلماخستن فرض ونه شول نو له فرض سره به
سنتونه هم راګرزوي ځکه چې سنت د فرضو تابع دي او وتر چونکه
مستقل او ځان ته واجب دي او هغه په اوداسه ادا شول ځکه د هغه
راګرزولو ته اړتيا نشته او صاحبين خو وتر هم سنت بولي ځکه نو له
فرضو سره دوتر د راګرزولو حکم کوي د مسئلې صورت په دې ډول
دی چې ترلمانځه وروسته په وخت کې دننه ورپه ياد شي او که چيرې
تروخت تيريدو وروسته ورپه ياد شول نو صرف دلماخستن فرض دې
ادا کړي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۷۴ بحواله هدايه باب قضاء
الفوائت ج ۱ ص ۱۳۹»

## بیله اړتیا فتحه ورکول

سوال: امام تر دریم رکعت وروسته څلورم رکعت ته ولاړ شو یوه مقتدي په دې فکر چې څلور رکعته پوره شول دامام د کښېنولو لپاره سبحان الله وویله خو دامام یقین ؤ څکه هغه د مقتدي فتحې ته توجه ونکړه او څلورم رکعت یې وکړ لمونځ یې پوره کړی په دې صورت کې د دغه بې ضرورته فتحه ورکونکي مقتدي لمونځ صحیح شو او کنه؟ جواب په پوښتل شوي صورت کې سبحان الله ویل امام ته د ښودلو په وجه ده او له کلام الناس څخه نه ده څکه نو د امام او مقتدي دواړو لمونځونه صحیح شول «امداد الفتاوی ج ۱ ص ۴۵۲»

## دلماخستن دلمانځه تر اداکولو وروسته دنفلو په نیت په جماعت کې برخه اخیستل

سوال: که چا دلماخستن لمونځ اداکړ بیا چې یې کله جماعت ولید په کې شریک شو او س به دی سنت او وتر را اګرزوي او کنه؟ جواب: سنت او وتر دې نه کوي هغه خو مخکې اداکړي او دا دنفلو په حکم دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۲۰»

## دلماخستن دلمانځه یو رکعت نیونکی به پاته لمونځ څنګه پوره کوي

سوال: د دریو رکعتونو تر بشپړیدو وروسته یو سړی په امام پسې په لمانځه کې شریک شو دا کس به دامام تر سلام وروسته پاته لمونځ څرنګه پوره کوي؟ یعني په کوم کوم رکعت کې به له سورة فاتحه سره سورة یوځای کوي او په کوم رکعت کې به ناسته کوي؟ جواب: دامام



تر سلام اړولو وروسته دې ولاړ شي ثنا (سبحانک اللهم الخ) دې ووایي بیا دې تراعوذ بالله بسم الله ویلو وروسته سورة فاتحه او سورة ووایي رکوع او سجده دې وکړي ناسته دې وکړي په دوهم رکعت کې دې هم سورة فاتحه او سورة ووایي خو تر دې رکعت وروسته به ناسته نه کوي او په دریم رکعت کې به یوازې سورة فاتحه ووایي او بیا به د عادت سره سم اخري ناسته وکړي لمونځ به پوره کړي «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۴۴»

## د دریو رکعتو په کولو د سجده سهوه کونکي لمونځ څنګه شو

سوال: امام د لماخستن په لمانځه کې پر دریم رکعت سهواً کیناستی په دې فکر چې څلورم رکعت دی خو د ده سمدستي یقین شو چې دري رکعته و شول ده التحیات پوره کړه سجده سهوه یې وکړه او پر هم دغه دریو رکعتونو یې سلام وګرزاوی لمونځ و شو او کنه؟ که چا چېل لمونځ را وګرزاوی نو بیا شول او کنه؟ جواب: ۱ په دې حالت کې لمونځ صحیح نه شو ۲ د لمانځه راګرزول په ټولو ضروري دي چا چې یوازې را وګرزاوی د هغه لمونځ صحیح شو «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۱ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۳ باب سجود السهو و باب الامامة»

## د لماخستن پر دریم رکعت په هیره کیناستل

سوال: امام سهواً د لماخستن پر دریم رکعت کیناستی د مقتدي په الحمد لله ویلو سمدستي ولاړ شو او په ناسته کې د شک په وجه او د الحمد لله ویلو په وجه ده څه نه ؤ ویلي وروسته یې سجده سهوه ونکړه لمونځ و شو او کنه؟ جواب: که چیرې ناسته ډیره لږه وه او تر ډیره

نه کیناستی نو سجده سهوه واجب نه شوه لمونځ صحیح شو «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۱۴»

## دلماخستن پردریم رکعت ترسلام ګرزولو وروسته یو رکعت ورسره بل یوځای کول

سوال: امام دري رکعته وکړل سهوأ یې سلام وګرزاوی او مخ پرقبله ناست ؤ مقتدیانو یادونه وکړه چې دري رکعته وشول ددې په اوریدو امام الله اکبروواییی ولاړشو څلورم رکعت یې وکړاو په پای کې یې سجده سهوه وکړه سلام یې وګرزاوی آیا دامام او مقتدیانو لمونځ صحیح شو او که نه؟ جواب: که چیرې امام هیڅ نه ؤ ویلي نو دهغه لمونځ وشو او مقتدیانو که چاڅه خبره نه وه کړې دهغوی لمونځ هم وشو او کومو مقتدیانو چې خبرې وکړې دهغوی لمونځ صحیح نه شو هغوی دې خپل لمونځ راوګرځوي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۱۰ ددرالمختار ج ۱ ص ۶۹۱ په حواله»

که چیرې امام په هیره پرلومړي یادریم رکعت کیناستی له شاکوم مقتدي فتحه ورکړه یاپه خپله ورپه یاد شول نو امام باید چې دولاړیدو پرمهال تکبیروواییی «مسائل سجده سهوه ص ۷۱ د کبیري ص ۳۱۳ په حواله»

## څوک چې په پنځم رکعت کې شامل شي دهغه لمونځ وشو او که نه

سوال: امام پنځم رکعت ته ولاړشو او شپږ رکعته یې پوره کړل سجده سهوه یې وکړه سلام یې وګرزاوی په پنځم رکعت کې یو سړی ورسره شریک شو نو دهغه لمونځ صحیح شو او که نه؟ جواب: امام که چیرې

پرڅلورم رکعت دتشهد په اندازه کیناستی بیا سهوأ ولاړشو او دپنځم رکعت سجده یې وکړه نو شپږم رکعت دې بل ورسره یوځای کړي او سجده سهوه دې وکړي دده فرض پوره شول که کوم کس په پنځم یاشپږم رکعت کې ددې امام مقتدی شو نو دهغه لمونځ نه صحیح کیږي ځکه چې دامام دغه دوه رکعته نفل دي «فتاوی دارالعلوم ج ۲ ص ۴۱۱ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۷۰۱ باب سجود السهو»

## دلماخستن پنځه رکعته کولو حکم

سوال: دلماخستن په لمانځه کې پرڅلورم رکعت دامام داخیال شو چې دري رکعته شوي دي ځکه ولاړشو ځینې مقتدیان کیناستل امام ته یې دکیناستو اشاره وکړه خو امام پرې باک ونه کړ بلکه پنځم رکعت یې پوره کړ سجده سهوه یې وکړه او لمونځ یې ختم کړ په دې صورت کې دامام صاحب لمونځ صحیح شو او که نه او کوم مقتدیان چې دآخري ناستې په نیت لومړی کیناستلي وو او دپنځم رکعت په رکوع کې شامل شول دهغوی لمونځ څنګه شو صحي شو او که نه؟ جواب: امام صاحب چې کله پرڅلورم رکعت نه کیناستی او پنځم رکعت ته ولاړشو بیا یې چې دپنځم رکعت سجده وکړه کیناستی نو دآخري ناستې پاتیدو له امله دامام لمونځ صحیح نه شو او کله چې دامام لمونځ صحیح نه شو نو په مقتدیانو کې دهیچا لمونځ هم نه شو صحیح نه دمسبوق او نه مدرک «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۰۵ بحواله هدایه باب سجود السهو ج ۱ ص ۱۴۲»

## امام په هیره په دوهم رکعت سلام وګرزاوی

سوال: امام پراوله ناسته په هیره سلام وګرزاوی نواوس پاتې لمونځ کولای شي اوکنه ؟اوپه دواړه سلامو لمونځ صحیح کیږي اوکنه ؟
جواب: په هیره دواړو لوروته په سلام ګرزولو لمونځ نه فاسدیږي پاتې رکعتونه دې وکړي په پای کې دې سجده سهوه وکړي لمونځ صحیح کیږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۱۲ دردالمختار ج۱ ص ۵۷۵ په حواله»

## دلماخوستن په لمانځه کې که قرائت سوکه ووایي نوڅه حکم یې دی

سوال: امام صاحب په جهري لمانځه کې سوکه قرائت ووې وروسته په داسې وخت کې ورپه یادشول چې دالمونځ خو جهري دی چې ده څه قرائت ویلی ؤ بیرته یې له سره قرائت شروع کړ نوآیادده لمونځ صحیح شو اوکنه ؟ که چیرته سجده سهوه هم ونه کړي لمونځ یې څه حکم لري ؟ جواب: لمونځ وشود راګرزولو اړتیایې نشته خوکه یې ددریوآیتونوپه اندازه کراوویلی ؤ نوسجده سهوه لازمه ده اوکنه نه ده لازمه اودسجده سهوې دلزوم په صورت کښې یې که سجده سهوه ونه کړه دلمانځه اعاده واجب ده «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۰۸»

## دلماخستن په اخرنیو رکعتونو کې په جهر کولو سجده سهوه

سوال: که چیرې ملاامام دلماخستن په اخري رکعتونو کې په زوره قرائت ووایي نوسجده سهوه واجب ده اوکنه ؟ جواب: په دې صورت کې سجده سهوه لازمیږي لکه چې په شامي کې لیکل شوی چې دلماخستن په اخري دوورکتونوکې که څه هم قرائت واجب نه دی



خو که قرائت ووایي نو سوکه ویل یې لازم دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۸۹ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۴۹۷ فصل فی القرائت»

## دلماخستن په قضاء کې به قرائت څنګه وایي

سوال: دلماخستن لمانځه په قضاراوړلو کې قرائت په زوره ویلای شي اوکنه ؟جواب: که په همدغه وختو کې قضاراوړي نو په زوره قرائت ویلای شي اوکه په ورځ کې قضاراوړي نونه یې شي ویلای «داحکم دمنفردلیکل شوی» فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۴۵ بحواله درمختار ج ۱ ص ۴۹۷ فصل فی القرائت»

## دلماخستن دلمانځه په اوله ناسته کې سهواً ولاړشو بیرته کیناستې

سوال: په درې رکعتیزیا څلور رکعتیز فرض یاواجب لمانځه کې که اوله ناسته سهواً پاته شي ترسیده دریدو وروسته ولاړه کوم چې فرض ده هغه پریښودل اوناسته کول کوم چې واجب ده لمونځ فاسدوي اوکنه ؟ جواب: چې اوله ناسته پریږدي یاجګ دریدوته نږدې شي بیاد التحیات ویلو لپاره کیني په دې سره فرض پریښودل اودواجب پرلور تلل نه لازمیږي خودفرضو په ادا ینه کې ځنډ راځي چې دهغه جبران په سجده سهوه سره کیږي ځکه نوراجح اوحق داده چې لمونځ فاسد نه شو سجده سهوه کول غواړي خو داسې کول قصداً مناسب نه دي که یې وکړي ګنهګاریږي «فتاوی دارالعلوم ج۱ ص ۱۵۹ بحواله درمختار مع شامی ج۱ ص ۲۹۷ وفتح القدیر ج۱ ص۴۴۵ »

## دلماخستن يوازې لمونځ کونکی که په جماعت کې شريک شي نو آياد جماعت څلور رکعته په تراويحو کې حسابيږي

سوال: په روژه کې يوه ناروغه سړي دلماخستن لمونځ کوروکړ بيايې څه توان ومونده مسجد ته راغلی جماعت ولاړؤ دی دتراويحوپه نيت دلماخستن په جماعت کې شريک شو نودغه څلوررکعته په تراويحو کې حسابيږي او کنه؟ ۲ همدارنګه دجماعت لمونځ په قضاء کې حساب کيدلای شي؟ که يې دقضاپه نيت برخه په کې واخيسته نوصحيح ده او کنه؟ جواب: صحيح خبره داده چې په تراويحو کې نه حسابيږي ځکه چې دتراويحودرجه که څه هم ترفرضو ټيټه ده خوهغه يوځانګړې اومستقل سنت مؤکددي دهغه دځانګړتياپاملرنه ضروري ده ؟ ۲ په پوښتل شوي صورت کې قضاصحيح نه ده ځکه چې دامام لمونځ دوخت اداءده اودمقتدي لمونځ قضاءده ددواړولمونځونه په صفت کې سره يونه دي «فتاوی رحيميه ج ۳ ص ۸۴ بحواله قاضی خان ج ۱ ص ۱۱۱ وشامی ج ۱ ص ۵۵۲ و درمختار ج ۱ ص ۵۴۲ و نورالايضاح ص ۸۱»

## که مقتدي په امام پسې التحيات پوره کړي نو څه حکم دی

امام سلام وګرزوی مقتدي ته په کارده چې التحياته پوره کړي سلام وګرزوي که چيرې درود اودعاپاته وي نودهغه پاتيدل هيڅ پروانه لري دامام سره دې يوځای سلام وګرزوي او که چيرې امام دريم رکعت ته ولاړشونودچاالتحيات چې پاته وی هغه بايد التحيات پوره کړي بياولاړشي او که بې له التحيات پوره کولو ولاړشو هم لمونځ صحيح کيږي « مسائل سجده سهوه ص ۲۹»



## مسبوق که په پاتې رکعت کې سهوه شي

سوال: مسبوق يعني له چاڅخه چې څه رکعتونه تيرشوي وي که هغه په پاتې رکعتونو کې خطاشي نوسجده سهوه به کوي او کنه؟ جواب: بايد سجده سهوه وکړي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۹۵ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۵۵۷ باب الامامت»

## که مسبوق له امام سره سلام وګرزوي

سوال: له چاڅخه چې څه رکعتونه تيرشوي وي هغه که سهواً له امام سره سلام وګرزوي نوسجده سهوه لازميږي او کنه؟ جواب: ترامام که لږهم وروسته سلام وګرزوي نوپرمسبوق سجده لازميږي په شامي کې راځي چې له امام سره بالکل برابراويوځای سلام ګرزول مشکل شاذاونادردي ځکه په عامه توګه دسجده سهوې دوجوب حکم کيږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۹۹ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۵۲۰»

که په هيره له امام مخکې يا بالکل له امام سره سره سلام وګرزوي نوپرهغه سجده سهوه لازمه نه ده خوچونکه په حقيقي معنی له امام سره برابريدل مشکل دي ځکه دسجده سهوې دوجوب حکم کيږي «پورته بيان شوې حواله»

## دوولسم باب

## دوتروثبوت اومسئلي

## دوتروفضائل اومسائل

عنْ خارجة بن حذافة قال خرج علينارسول الله ﷺ قال انّ اللهَ اَمَدّكُمْ بصلَاةٍ خيْرٌلكمْ مِنْ حُمُرِالنَّعَمِ الوِتْرُجَعَلَهُ اللهُ لكُمْ فِيمَابَيْنَ صَلَاةِ

العشاء الی ان یطلع الفجر «رواه ترمذي وابوداؤد» له حضرت خارجة
بن حذافة ﷺ څخه روایت دی چې یوه ورځ رسول الله ﷺ له کوره
بهر تشریف راوړ مونږته یې په خطاب کې وفرمایل: الله ﷻ یوبل
لمونځ تاسو ته اضافه کړ هغه ستاسو لپاره ترسرو او ښانو هم غوره دی
(کوم چې تاسو د دنیا تر ټولو ګران مال ګڼئ) هغه لمونځ وتر دي الله
تعالی دغه لمونځ ستاسو لپاره دلماخستن له لمانځه څخه وروسته
دسهار د سپیدو تر راختو مقرر کړی ده یعنې هغه ددې پراخ وخت په
هره برخه کې اداکولای شئ «معارف الحدیث ج ۳ ص ۳۲۷ بحواله
جامع الترمذی وسنن ابوداود»

عن بریدة قال سمعت رسول الله ﷺ یقول الوتر حق فمن لم یوتر فلیس
منا الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا
«رواه ابوداؤد» له حضرت بریدا اسلمي ﷺ څخه روایت دی چې ماله
رسول الله ﷺ څخه په خپله واوریدل رسول الله ﷺ وفرمایل: وتر لمونځ
حق دی څوک چې وتر نه اداکوي له مونږ څخه نه دی وتر حق دي څوک
چې وتر نه اداکوي هغه له موږ څخه نه دی وتر حق دي څوک چې وتر نه
اداکوي هغه له مونږ څخه نه دی «دا خبره رسول الله ﷺ درې ځله
تکرار کړه» سنن ابوداؤد»

تشریح: ښکاره ده چې دوتر په اړه دسختۍ او وېرونې دا آخرنې
الفاظ دي له دا دول حدیثونو څخه امام ابو حنیفه ﷺ دا فهمولې چې
وتر یوازې سنت نه بلکه واجب دي یعنې ددې درجه تر فرضو ټیټه او له
مؤکد سنتونو زیاته ده «معارف الحدیث ج ۳ ص ۳۲۸»



## دوترو وجوب او طریقه

وتر واجب او درې رکعته په یوه سلام سره دي او دوتر په هر رکعت
کې سورة فاتحه او سورة ویل کیږي دوتر په دوهم رکعت کښینئ
او صرف التحیات وو ایاست او دریم رکعت ته ترولاړیدو وروسته
سبحانک اللهم مه وایاست کله چې په دریم رکعت کې د سورة له
ویلو فارغ شوئ نو دواړه لاسونه دغوږو په برابرې پورته کړئ
او تر رکوع مخکې دعاء قنوت (اللهم انا الخ) وو ایاست بیا رکوع
وکړئ لمونځ پوره کړئ «نورالایضاح ص ۹۳»

دوترو لمونځ د ماښام په شیر درې رکعته دی په دې کښې اوله ناسته
واجب ده څکه نو که دوتر په لمانځه کې اوله ناسته پاتې شوه
نو سجده سهوه واجبیږي «مسائل سجده سهوه مخ ۷۹ بحواله شامي
ج ۱ ص ۲۲۳»

## دوترو امامت

سوال: آیا دوترو امام د فرض لمانځه له امامه پرته بل څوک کیدای شي
؟ جواب: دوترو امام د فرض لمانځه له امام پرته بل څوک کیدلای شي
«فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۵۸» داچې مشهوره ده چې کوم شخص
فرض لمونځ ورکړی هماغه به وتر ورکوي که چیرې کوم بل څوک
وتر ورکړي نو جائز نه ده دا غلطه ده بل څوک وتر ورکولای شي
داصحیح ده «فتاوی رشیدیه کامل ص ۳۲۸»

## که دامام مذهب په رکوع کې دقنوت دعاویل وي نو مقتدي به څه کوي

که چیرې وترپه داسې امام پسې کوي چې تر رکوع وروسته په ولاړه دعاقنوت وایي او دمقتدي دامذهب نه وي نو مقتدي دې په دې کې دامام متابعت او پیروي وکړي «ترجمه فتاوی عالمگیري ج ۱ ص ۱۷۸»

## که ټول خلک دروژې په میاشت کې تراویح پریږدي نو وترپه څنګه کوي

سوال: دروژې په میاشت کې که دلماخستن لمونځ په جماعت سره وکړي او ټولو خلکو تراویح یومخ پریښودې نو په دې صورت کې وترپه جماعت جائزدي او کنه؟ جواب: ددرمختارلومړي ټوک ۴۷۱ ص عبارت څخه معلومیږي چې دخلکو دغه ډله دې وترهم جلاجلا وکړي «امدادالفتاوی ج ۱ ص ۴۵۲»

## که فرض په جماعت ونشي نو آیا وترپه جماعت کولای شي

سوال: یوه سړي فرض یوازې وکړل اودتراویحو ټول یا زیاتره رکعتونه یې له امام سره وکړل یایې یومخ ونکړل په دري سره صورتونو کې دوترو په جماعت کې برخه اخستلای شي او کنه؟ جواب: په دري سره صورتونو کې دوترو په جماعت کې برخه اخیستلای شي تراویح له امام سره ټولې یا ځینې نه کولو په صورت هم دوترو په جماعت کې شریکیدو جوازپه درمختارکې بیان شوی ځکه چې وترڅان ته لمونځ دی نه دلماخستن دلمانځه تابع دی اونه دتراویحو «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۵۵»

## که امام صرف فرض ورکړي او حافظ تراویح او وتر

سوال: ملاامام که دلماخستن فرض او وترورکړي یاصرف فرض ورکړي او حافظ صاحب تراویح او وترورکړي نو څه حکم دی؟ جواب: داپروانه لري حضرت عمر رضی به فرض لمونځ او وترورکول او حضرت ابی بن کعب رضی به تراویح ورکولې همدارنګه که امام صرف فرض ورکړي او حافظ صاحب تراویح او وترورکړي نو داهم څه پروانه لري «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۹۴ دعالمګیري ج ۱ ص ۷۴ په حواله»

## له روژې وروسته وترپه جماعت څنګه دي

سوال: دروژې مبارکې له میاشتې پرته که وترپه جماعت وشي نو تحریمي مکروه دي او که تنزیهي په دې کښې دتداعي او ناتداعي (بلنې اونابلنې) توپیرشته او کنه؟ جواب: اتفاقاً که کله داسې وشي نو تنزیهي مکروه دي او که همیشه توب او پابندي پرې وشي نو تحریمي مکروه دي که په تداعي سره وي او که بیله تداعي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۳ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۳ باب الوتروالنوافل» دروژې له میاشتې پرته که اتفاقاً په سړي پسې یو یادوه کسان ودریږي نو کراهت نشته خو که سم دخلکو په رابللو جماعت وکړي یا اتفاقاً تردوو زیات مقتدیان شول نو مکروه دي «اشرف الاضاح شرح نورالایضاح ص ۱۴۷»

## په روژه کې وترپه جماعت افضل دي

دروژې مبارکې په میاشت کې وترپه جماعت کول افضل دي پر دې دټولو مسلمانانو اجماع ده او له هغه پرته په جماعت افضل نه دي ځکه چې هغه یوډول نفل دي او له تراویحو پرته دنفلو جماعت نشته

بلکه مکروه دي ځکه نو احتیاط په جماعت نه کولو کې دی خو که
چیرې د یوه یا دوو کسانو په نفلو کې جماعت وي نو هیڅ پروانه لري
«اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص ۱۴۷»

## تهجد کونکي له فرضو سره وتر کولای شي کنه

سوال: کوم خلک چې تهجد کونکي دي هغوی د تهجد پروخت
وتر اداکوي که وتر مخکې د لماخستن له لمانځه سره وکړي نو دا څه
پروا لري او کنه؟ زیاتره خلک وایي چې تر وترو وروسته تر سهاره
پورې هیڅ یو لمونځ نه کیږي؟ جواب: په دې کښې هیڅ حرج نشته
کوم خلک چې تهجد کونکي دي هغوی دې هم وتر د لماخستن له
لمانځه وروسته وکړي بلکه زیات احتیاط په دې کښې دی بیا که
چیرې را پورته شي نو د تهجد لمونځ دې وکړي «فتاوی دارالعلوم ج ۴
ص ۱۲۰ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۳۴۲ کتاب الصلاة»
دا خبره غلطه ده چې تر وترو وروسته بیا نفلونه نه کوي په روژه کې دې
وتر په جماعت سره وشي ځکه چې د جماعت فضیلت زیات مهم شان
لرونکی دی د وخت له فضیلت څخه «امدادالفتاوی ج ۱ ص ۴۵۵»

## که څه تراویح پاتې شوې نو لومړۍ به تراویح پوره کوي او که وتر

سوال: د تراویحو تر څلورو رکعتونو کیدو وروسته یو سړی راغلی
فرض یې وکړل له امام سره په تراویحو کې شریک شو کله چې د امام
تراویح پوره شي نو دغه سړی به له امام سره وتر کوي او که به خپل
پاتې تراویح پوره کوی؟ جواب: په عالمګیري کې راغلي چې دغه



شخص دې د وترو په جماعت کې برخه واخلي وروسته دې خپلې
تراویح پوره کړي «امدادالفتاوی ج ۱ ص ۴۹۶»

## د وترو له کولو وروسته معلومه شوه چې د تراویحو دوه رکعتونه را ګرزول واجب دي

سوال: په روژه کې تر شلو رکعتونو تراویحو او وترو کولو وروسته
معلومه شوه چې دوه رکعتونه د غلطۍ له امله را ګرزول واجب دي هغه
دوه رکعته را ګرزول شول په دې فکر چې وتر تر شلو رکعتونو
تراویحو وروسته اداکیږي لهذا نو د وترو لمونځ صحیح او معتبر نه
شو ځکه یې نو بیا دوهم ځل وتر په جماعت سره اداکړل نو دا لمونځ
صحیح شو او کنه؟ جواب: مخکې کړي وتر یې صحیح
او معتبر ؤ د را ګرزولو اړتیا یې نه وه چې را یې ګرزول نو دا صحیح و نه
شو له نورالایضاح څخه معلومیږي چې وتر تر تراویحو مخکې کول هم
صحیح دي او وروسته کول هم صحیح دي ځکه نو د تراویحو له
شلو رکعتونو مخکې کړي وتر معتبر او صحیح دي «فتاوی رحیمیه ج
۱ ص ۱۵۷»

## د وترو نیت

سوال: د وترو په نیت کې واجب اللیل یعني د شپې واجب ویل څنګه
دي؟ جواب: د وترو په نیت کې دا ویل په کار دي چې نیت کوم زه
د وترو د لمانځه او که چیرې واجب اللیل هم وویل شي نو هیڅ پروانه
لري «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۲۰ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۳۸۹
باب شروط الصلاة» د حنفي لپاره د وترو په نیت کې د واجب لفظ ویل

مناسب دي خو ضروري نه دي البته د اتعین ضروري دی چې د اوتر دي «حاشیه امداد الفتاوی ج۱ ص ۴۵۷»

## وتروته باید واجب وویل شي او کنه

سوال: د وترو د اداکولو پرمهال وتروته واجب ویل په کار دي او کنه ځینې مولیان منعه کوي یعني وایي چې واجب ویل نه دي په کار؟
جواب: وتروته واجب ویل په کار دي وتر د امام اعظم په نزد واجب دي لهذا د وترو د اداینې پرمهال د واجب لفظ ویل هیڅ پروانه لري او که نه وویل شي نو هم وتر اداکیږي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۲۳ بحواله ردالمحتار ج۱ ص ۳۸۸ باب شروط الصلاة»

## د سنتو په نیت وتر کول

سوال: تر تراویحو وروسته چې کله وترو ته ولاړ شو نو یوه سړي په هیره د سنتو نیت وکړی وتر یې اداکړل خو د قنوت د دعا ویلو پر وخت دده ورته خیال شو په دې صورت کې وتر صحیح شول او کنه؟ جواب: دده وتر صحیح شول «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۵۲ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۳۸۷، ۳۸۸ باب شروط الصلاة»

## د تراویحو په ګڼلو په وترو کې اقتدا کول

سوال: د امام تر وترو پیل کولو وروسته یوه سړي د تراویحو په ګڼلو ورپسې اقتدا وکړه اوس دده وتر صحیح کیږي او کنه؟ جواب: په مسئوله صورت کې دې د امام له سلام اړولو وروسته څلورم رکعت ورسره یو ځای کړي لمونځ دې پوره کړي د غه څلور رکعتونه به نفل شي او وتر به دده په ذمه باقي وي هغه اداکول غواړي «فتاوی رحیمیه ج۱ ص ۳۵۳»



## په وتر کونکي پسې تراویح کونکي

سوال: حافظ صاحب په غلطی سره له ۱۲ رکعتونو وروسته د وترو نیت وتاړی مقتدیان د تراویحو په نیت ورسره شریک ؤ له سلام وروسته مقتدیانو وویل: چې د حافظ صاحب څلور رکعته هیر شول هغه پاتې څلور رکعته تراویح ورکړې پوښتنه دا ده چې وتر صحیح شول او کنه؟ حافظ صاحب وایي چې وتر احتیاطاً را ور ګرزوئ په دې صورت کې د مخکنیو وترو اعتبار نه ؤ دوهم ځل حافظ صاحب وتر ورکړل؟ جواب په پوښتل شوي صورت کې د حافظ د وترو مخکنی لمونځ معتبر دی مګر د مقتدیانو نه لومړنی د وترو لمونځ معتبر دی او نه دوهم ځکه چې لومړی ځل د وترو د لمانځه نیت نه ؤ او په دوهم ځل که څه هم د وترو نیت ؤ خو په داسې چا پسې یې اقتدا کړې وه چې هغه وتر کړي وو ځکه دا هم معتبر نه دی «فتاوی رحیمیه ج۱ ص ۳۴۲»

## په وترو کې له رکوع مخکې د لاسونو پورته کولو او دعا قنوت ثبوت

سوال: دلته یو څه کسان غیر مقلد دي هغوی د وترو رکعتونه خو درې کوي اما قنوت تر رکوع ورسته وایي په دوی کې یو د لږ علم خښتن دی هغه وایي که په حدیث دا ثابت شي چې رسول الله ﷺ له رکوع مخکې لاسونه پورته کول بیا یې قنوت ویله نو مونږ یې منلو ته چمتو یو خو په حدیث دا ثابت نه دي تاسو د دې د ثبوت په اړه یو حدیث راته ولیکئ؟
جواب: اخرج ابو نعیم فی الحلیة عن عطاء بن مسلم حدثنا علاء بن المسیب عن حبیب بن ابی ثابت عن ابن عباس قال اوتر النبی ﷺ بثلث قنت فیها قبل الرکوع ۲ عن ابن عمر أن النبی ﷺ کان یوتر بثلث رکعات

ويجعل القنوت قبل الركوع ۳ وقدروى عن ابن عمركان اذافرغ من القرائة كبّر وفي الذخيرة رفع يديه حذاء اذنيه وهومروى عن ابن مسعود وابن عمروابن عباس وابى عبيدة واسحق وقد تقدم «كبرى شرح منيه» له دغوروايا تو څخه څرګند شوه چې وتردي ركعته دي اودعاءقنوت تررکوع مخکې ده اوله حضرت عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عمر، عبدالله بن عباس ؓ اونورو څخه دقنوت دتكبيرپروخت لاسونه پورته كول ثابت شول اوښكاره ده چې دغوستروصحابو ؓ له ركوع څخه مخكې په قنوت اوله تكبيرسره دلاسو پورته كولو په حال کې رسول الله ﷺ ليدلی ځكه نودادليل كافي دی اوكه لامذهبيان دانه مني نوهغوی ته ووايه چې كوم مذهب دعبدالله بن مسعود، عبدالله بن عمر، اوعبدالله بن عباس ؓ اونورواصحابوؤهم هغه زمونږ مذهب دی په كوم دليل چې دغوحضراتو دقنوت دتكبيرويلوپرمهال لاسونه پورته كول هم هغه زمونږ دليل دی «فتاوی دارالعلوم ج۴ص ۱۵۷ باب مسائل نمازوتر كبيري شرح منيه غنية المستملى باب الوترص ۳۹۲»

## په اللهم اناكې دملحق حاء ته زوروركړوكه زير

سوال: په دعاقنوت كې چې كوم دملحق لفظ دی دهغه پرحاء زوردی كه زير؟ جواب: په دعاقنوت كې دملحق پرحاء زوراوزيردواړه ويل شوي دي اودواړه جائزهم دي كه څه هم مشهورزيردی اوزيرغوره هم دی «فتاوی دارالعلوم ج۴ص ۱۵۳، ۱۷۳ بحواله ردالمحتارج۱ص ۷۲۴ باب الوتروالنوافل»



## له سورة فاتحې وروسته دعاقنوت ويل

كه يوچادوتروپه دريم ركعت كې له سورة فاتحه ويلووروسته دعاقنوت وويله سورة ورسره يوځاى كول يې هيرشول بياركوع ته په رسيدوورپه يادشونوولاړشو سورة يې ووايی بيايې دعاءقنوت وويله بيادوهم ځل ركوع ته ولاړی نوپه پای کې دې سجده سهوه وكړي كه يې ترالحمدلله وروسته قنوت وويله ركوع يې وكړه اوسورة يې پريښود په ركوع كې ورپه يادشونوسردې راپورته كړي سورة دې ووايي اوقنوت اوركوع دې راوګرزوي اوسجده سهوه دې وكړي اوكه چيرې يې الحمدلله پريښې وه نوداالحمدلله سره دې سورة اوقنوت هم راوګرزوي اوركوع دې هم دوهم ځل وكړي اوكه دوهم ځل ركوع ونكړي بياهم روادي «ترجمه فتاوی عالمګيري ج۱ ص ۱۷۲»

## دوتروپه دريم ركعت كې يې تكبيرويل هيرشو

كه كوم شخص دوتروپه دريم ركعت كې دتكبيرويلوپرځاى ركوع ته لاړی بياورپه يادشونوبيرته راپورته شواوالله اكبريې ووايه دعاقنوت يې وويله نووروسته دې دوهم ځل ركوع نه كوي اولمونځ دې پوره كړي اوكه چيرې ددعاقنوت لپاره نه راوګرزي بياهم لمونځ صحيح دی په دواړوصورتونوكې سجده سهوه كول واجب دي «مسائل سجده سهوه ص۷۲ بحواله درمختاربرحاشيه شامي ج۱ ص۲۲۷»

## دعاقنوت په حديث ثابت ده اوكنه

سوال: يوكس وايي چې دعاقنوت په حديث ثابت نه ده رسول الله ﷺ په وتروكې دعاقنوت نه ده ويلې داقول صحيح دی كه غلط؟ جواب:

ددې سړي ويناغلط ده مروجه دعاقنوت دترمذي په حديث ثابت ده اوپه وتروکې دعاقنوت ويل په احاديثوکې راغلې ده «فتاوى دارالغلوم ج ۴ ص ۱۲۲»

## سره له دې چې دعاقنوت يې په يادوي بله دعاويل

سوال: که چيرته يې دعاقنوت په يادوي نوآيابله دعامثلاً لکه ربناالخ ويلاى شي اوکنه؟ جواب: که يې دعاقنوت په يادوي نوربناآتنااونورنشي ويلاى خاص دعاقنوت ويل په کارده «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۱۲۲ بحوالــه ردالمحتــارج ۱ ص ۲۲۴ بــاب الوتروالنوافل»

## که دچادعاقنوت په يادنه وي نوبه څه وايي

سوال: دکوم چاچې دعاقنوت يادنه وي دهغه لپاره دقنوت پرځاى سورة اخلاص ويل جائزدي اوکنه؟ اولمونځ صحيح کيږي اوکنه؟ جواب: په شامى کې راغلي دي چې دچادعاقنوت زده نه وي هغه دې ربناآتنافى الدنياحسنة الخ وايي اوفقه ابو الليث فرمايي چې اللهم اغفرلي دې درې ځله ووايي ځينوعلماؤ فرمايلي چې يارب دې درې ځله ووايي اوځرنګه چې داځاى ددعادى ځکه سورة اخلاص ددې پرځاى نه دريږي خولمونځ صحيح کيږي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۱۲۴ بحواله ردالمحتارج ۱ ص ۲۲۴ باب الوتروالنوافل»

## که له رکوع مخکې يې دعاقنوت وويله نورکوع به نه راګرزوي

امام ته په رکوع کې وريادشول چې قنوت مې نه ده ويلې نوبايد قيامه ونکړي اوکه ودريدى اوقنوت يې ووايه نودرکوع راګرزول نه دي په



کاراوکه ده رکوع هم راوګرزوله اومقتديانوپه مخکنى رکوع کې دده پيروي نه وه کړې په دوهمه رکوع کې يې متابعت وکړيايې په لومړي رکوع کې اتباع کړي وه اوپه دوهمه کې يې ونکړه نودهغوى لمونځ نه فاسديږي «ترجمه فتاوى عالمګيري ج ۱ ص ۱۷۷»

## بيله تکبيرويلودقنوت لوستلوڅه حکم دى

سوال: ملاامام دوتروپه دريم رکعت کې بيله الله اکبرويلواوبيله لاس پورته کولودعاقنوت ويل پيل کړل يوه مقتدي په الله اکبرويلوفتحه ورکړه ځکه نوده الله اکبرووايو اولاسونه يې پورته کړل بيايې قنوت وويله اودلمانځه په پاى کې يې سجده سهوه وکړه نوپه لمانځه کې کوم تاوان پيښ شواوکنه؟ جواب: لمونځ صحيح شو لکه چې په قرائت کې بيله اړتيا په فتحه ورکولولمونځ صحيح کيږي که څه هم ملاامام فتحه واخلي اوځرنګه چې سجده سهوه واجبونکې کوم کاروجودونه موند ځکه سجده سهوه نه واجبيږي «امدادالفتاوى ج ۱ ص ۴۵۱» قنوت ته راپورته کيدل نه دي په کارپه سجده سهوه سره جبران کيږي «فتاوى دارالعلوم ج ۴ ص ۱۲۱»

## که په اول يادوهم رکعت کې قنوت ووايي

که يې په هيره په لومړي يادوهم رکعت کې دعاقنوت وويله نودې ته هيڅ اعتبارنشته په دريم رکعت کې بياويل په کارده اوسجده سهوه به هم کوي همدارنګه که چاته شک شوچې دادوهم رکعت دى که دريم نوهغه ته په کاردي چې همدغه رکعت کې دعاقنوت ووايي اوداالتحيات لپاره کښيني بياتردې وروسته دوه رکعته وکړي په هغه کې دې دوهم ځل دعاقنوت ووايي «بهشتي زيورحصه دوهم ص ۲۸۰

بحواله طحطاوي ص ۱۲۲ ومسائل سجده سهوه ص ۵۹ بحواله عالمګیري ج۱ ص ۲۸»

## دامام دوترو اوله ناسته هیره شوه

سوال: امام دوترو پر دوهم رکعت کې دناستې پرځای دریم رکعت ته ولاړشو دمقتدیانو په فتحه ورکولو بیرته کیناستی اوس یې په پای کې سجده سهوه وکړه نو آیا وتر صحیح شول او که نه؟ جواب: دامام دوترو اوله ناسته هیره شوه نو اوس باید نه وای کیناستلی صرف په سجده سهوه وتر صحیح کیدل چې تر دریدو وروسته کیناستی دا یې غلطي وکړه خو لمونځ فاسد نه شو اوس چې یې سجده سهوه وکړه نو لمونځ صحیح دی دراګرزولو ضرورت نشته «فتاوی رحیمیه ج۱ ص ۳۴۲»

## دواجبو او سنتو په اوله ناسته کې درود ویل

سوال: دواجبو او سنتو لمونځونو په اوله ناسته کې تر التحیات وروسته درود شریف او نور ویل سجده سهوه واجبوي او که نه؟ او همدا رنګه که دواجبو او سنتو اوله ناسته هیره شي ولاړ شي نو د دریم رکعت له سجدې کولو مخکې کښیني او که نه؟ جواب: دواجب لمانځه مثلاً وترو هم هغه حکم دی کوم چې دفرض لمانځه دی نو دواجبو په اوله ناسته کې که تر التحیات وروسته درود او نور وویل شي نو سجده سهوه لازمیږي او دمؤکد سنتو په اړه دوه قوله دي خو زیات احتیاط دسجده سهوې دوجوب دی او داولې ناستې دپریښودو هم هغه حکمونه دي کوم چې دفرضو دي څرنګه چې داولې ناستې په پریښودلو کې دا حکم دی چې که ناستې ته زیات نږدې ؤ



نو کښیني دي او که ولاړه ته زیات نږدې ؤ نو نه دې کښیني او په پای کې دې سجده سهوه وکړي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۳۴۹ بحواله ردالمحتار باب صفة الصلاة ج۱ ص ۴۷۲ و ۲۹۷ باب سجود السهو»

## که امام بیله قنوت ویلو رکوع ته لاړ ی په مقتدیانو کې ځینو رکوع وکړه ځینو ونه کړه نو څه حکم دی

سوال: امام دوترو په دریم رکعت کې بیله قنوت ویلو رکوع وکړه مقتدیانو فتحه ورکړه بیا هم امام په رکوع کې ؤ او دشک له امله رکوع ډیره وځنډیده وروسته امام سجده سهوه وکړه ځینو مقتدیانو نه رکوع وکړه او نه یې دعاقنوت وویله او ځینو رکوع وکړه نو په دې صورت کې دچا لمونځ صحیح شو او که دټولو لمونځ فاسد شو نو ددې څه حکم دی؟ جواب: په دې صورت کې دامام لمونځ صحیح شو او چا چې له امام سره یا دامام له رکوع کولو وروسته رکوع وکړه دهغوئ لمونځ وشو دراګرزولو ضرورت نشته خو کوم مقتدیانو چې یو مخ رکوع ونکړه دهغوئ لمونځ دفرض پاتیدو له امله صحیح نه شو راګرزول یې ضروري دي دقنوت لپاره له رکوع څخه وقیام ته دراتلو اړتیا نشته په هیره ددعاقنوت په پاتیدو په سجده سهوه سره جبیره کیږي او په هیره ددعاقنوت پاتیدو څلور صورتونه دي ۱ په رکوع کې یې دعاقنوت ووایو ۲ یا یې رکوع پریښوده ولاړشو او دعاقنوت یې وویله دوهم ځل یې رکوع وکړه ۳ یا یې دوهم ځل رکوع ونکړه ۴ دعاقنوت یې نه په رکوع کې وویله نه یې له رکوع وروسته په ولاړه کې په دې څلورو صورتونو کې که یې سجده سهوه

وکړه نو لمونځ صحيح کيږي «فتاوی رحيميه ج ۴ ص ۳۹۷ بحواله عالمګيري ج ۱ ص ۷۱ درمختار مع شامي ج ۱ ص ۲۲۷»

## که امام دعاقنوت پريږدي رکوع ته لاړشي نو مقتدي به څه کوي

که چيرې امام دعاقنوت پريښودی رکوع ته لاړی نو مقتديانو ته په کارده چې که دوی دعاقنوت ووايي له امام سره په رکوع کې شريکيدای شي نو بايد دعاقنوت ووايي په رکوع کې ورسره شريک شي او که چيرې د دعاقنوت په ويلو له امام سره په رکوع کې نشي شريکيدای نو هغه دې هم قنوت پريږدي رکوع ته دې لاړشي او که امام رکوع وکړه دعاقنوت ورياده شوه او ده په ولاړه دعاقنوت وويله نو اوس ده ته دوهم ځل د رکوع کولو اړتيا نشته او که يې دوهم ځل رکوع وکړه او يو سړی راغلی په دغه رکوع کې ورسره شريک شو نو هغه د دغه رکعت موندونکی نه بلل کيږي او په پورتنيو بيان شويو هرصورت کې سجد سهوه کول واجب دي «مسائل سجده سهوه ص ۸۱»

## که مقتديانو لا دعاقنوت ختمه کړې نه وي امام رکوع ته ولاړشي

سوال: دوترو په جماعت کې امام دعاقنوت ختمه کړه رکوع ته لاړی خو مقتديانو لا نه وه ختمه کړې نو آيا دوی به د امام د اتباع په غرض بيله قنوته رکوع ته ځي؟ جواب: که لږ پاتې ده چې د هغه په پوره کولو له امام سره په رکوع کې شريکيدلای شي نو پوره يې دې کړي رکوع دې وکړي کنه پرې يې دې ږدي که يې د قنوت څه برخه ويلې وه



او څه پاتې وه نو په دې صورت کې به اوس د امام اتباع کوي ځکه چې د قنوت مقصد دعا ده او دعا لږ وي که ډيره دواړو ته شامله ده د امام اتباع واجب ده او د واجب تر پريښودلو مستحب پريښودل غوره دي ځکه مستحب دې پريږدي او د امام اتباع دې وکړي همدارنګه که لا تر اوسه يې دعاقنوت پيل کړي هم نه وه چې امام رکوع ته لاړی نو که مقتدي ته د رکوع تيريدو ويره وه نو قنوت دې پريږدي د امام په اتباع کولو دې رکوع وکړي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۵۴ بحواله عالمګيري ج ۱ ص ۱۰۴ اشرف لايضاح شرح نورالايضاح ص ۱۱۰»

## که دوترو په دوهم يا دريم رکعت کې شريک شي نو قنوت به کله وايي

سوال: په روژه کې دوترو د جماعت په دريم رکعت کې شامل شو پاتې دوو رکعتونو کې به دعاقنوت ويل کيږي او کنه؟ جواب: په روژه کې دوترو په جماعت کې که څوک په دريم رکعت کې شريک شو نو که يې دريم رکعت پوره ونيولی نو د امام سره دې دعاقنوت ووايي وروسته ويلو ته ضرورت نشته همدارنګه که د دريم رکعت په رکوع کې ورشريک شو بيا وروسته ويلو ته اړتيا نشته «ترجمه عالمګيري ج ۱ ص ۱۷۸» له امام سره يې دريم رکعت ونيوی نو اوس په دريم رکعت کې د امام په اتباع کولو دی دعاقنوت ولولي ګواکه دی په دريم رکعت کې دی او کله چې دی خپل پاتې شوي رکعتونه راګرزوي نو دعاقنوت دې نه وايي پر دې اجماع ده «اشرف الايضاح شرح نورالايضاح ص ۱۵۱»

## نیم سورت لوستل نیم پرېښودل څنګه دي

سوال: دوتروپه لومړي رکعت کې اذازلزلت سورة ولولي په دوهم کې نیم والعادیات اوپه دریم کې نیم القارعة ووایی نوآیاپه دې صورت کې لمانځه ته څه زیان رسیږي اوکنه؟ جواب: داسې کول ښه نه دي پوره پوره (کوچنی) سورة په هررکعت کې ویل افضل اوغوره دي خوپه هرصورة لمونځ په دې صورة هم وشو «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۷۱ بحواله ردالمحتار فصل فی القرائت ج ۱ ص ۵۰۵»

## په وتروکې دکوم سورة ویل سنّت دي؟

سوال: دوتروپه رکعتونوکې کوم کوم سورتونه ویل سنت دي؟ جواب دوتروپه لومړي رکعت کې سورة اعلی سبح اسم ربک الاعلی په دوهم رکعت کې کافرون اوپه دریم کې سورة اخلاص ویل مسنون اومستحب دي له رسول الله ﷺ څخه همدارنګه ویل ثابت دي خودمبارک ﷺ پردې همیشتوب نه دی کړی څکه نوهمیشتوب کول زیاتوب دی دوتروپه درې سره رکعتونوکې نورسورتونه ویل هم مسنون دي لکه په لومړي رکعت کې اذازلزلت الارض په دوهم رکعت کې انااعطینک الکوثر اوپه دریم کې قل هوالله، اودترمذي له روایته داهم معلومیږي چې په لومړي رکعت کې الهکم التکاثر یاانا انزلناه یااذازلزلت الارض په دوهم رکعت کې والعصر یااذاجاء یاانااعطینک په دریم کې قل یاایهاالکافرون یاتبت یدا یاقل هوالله «فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۳۹۷ بحواله شامی ج ۱ ص ۵۰۸ و ۲۲۳»



## سورتونه معلومول

حضرت شاه ولی الله رحمه الله په خپل کتاب حجة الله البالغة کې لیکي: چې رسول الله ﷺ په ځینولمونځونوکې دځینومصلحتونواوګټوپه خاطرد ځیني ځانګړو سورتونو ویل خوښ کړي خوپه قطعي توګه نه هغه تعیین کړی اونه یې نوروته تاکید فرمایلی چې داسې دې کوي نوپه دې اړه که څوک دهغه ﷺ اتباع کوي (په همغه لمونځونوکې هم همغه سورتونه زیاتره ووایي) نوښه دي اوکه څوک داسې نه کوي پرهغه چاهم هیڅ ملامتیااوحرج نشته رسول الله ﷺ له جمعې اواخترونوپرته په نوروټولولمونځونوکې دسورتونوتعیین نه دی کړی په فرضي لمونځونوکې له کوچنیواوغټوسورتونوڅخه کوم داسې سورت نشته چې ده مبارک ﷺ به نه وي ویلی اودنفلوپه یوه رکعت کې دوه سورتونه هم رسول الله ﷺ ویل خوپه فرضي لمونځونوکې نه، درسول الله لومړی رکعت به تردوهم اوږدوو «معارف الحدیث ج ۳ ص ۲۲۱»

## تر وترو وروسته دسبحان الملک القدوس دنه ویونکي څه حکم دی

سوال: یوکس له وترو وروسته په لوړاوازسبحان الملک القدوس درې ځله نه وایي آیاداد سنت پیروي کونکی بلل کیږي اوکنه؟ جواب: له وتروورووسته په لوړاوازدرې ځله سبحان الملک القدوس ویل مستحب دي اوپه ځیني روایاتوکې دریم ځل په زوره ویل راغلي نوله دې څخه دریم ځل سبحان الملک القدوس په زوره ویل ثابتیږي په هرحال داسې کول مستحب اوغوره دي اوپرنه ویونکي طعن

او ملامتي ويل نه دي په کار ځکه مستحب کار که څوک ونکړي نو هيڅ ملامتيا ورباندې نشته خو د سنت د اتباع غوښتنه داده چې لکه ځنګه چې رسول الله کړي دي هغسې يې دې وکړي يعنی که درې سره واره وي يا يو ځل په اخري کې وي سبحان الملک القدوس دې په لوړ اواز وو وايي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۷۴ بحواله مشکوة باب الوتر ص ۱۱۲»

## سبحان الملک القدوس څه وخت وو وايي

سوال: دوتر وله سلام وروسته چې کوم سبحان الملک القدوس درې ځله راغلي دي داچې سجده وکړي ويل کيږي او که په ناسته کې ويل کيږي او د احنافو په نزد جائز دي او کنه؟ جواب: دوتر وسلام چې وګرزوي نو دې کښيني ويې دوايي او د احنافو په نزدهم جائز او مستحب دي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۱۵۷ بحواله مشکواة باب الوتر فصل ثاني ص ۱۱۲»

## ديارلسم باب

## سنتونه او نفلونه څه شی دي

## له وترو وروسته د نفلو ثبوت او طريقه

په شپه او ورځ کې پنځه لمونځونه خو فرض دي او هغوی ګواکه د اسلام مهم رکن او د ايمان جزء دي له هغوی پرته د هغوی مخ او شاته او په نورو وختونو کې هم د څه رکعتونو کولو تاکيد هڅونه او تعليم رسول الله ﷺ کړی دی بيا له هغوئ څخه د کومو په اړه چې رسول الله ﷺ د تاکيد الفاظ کارولي دي يا د نورو هڅولو سره ده مبارک ﷺ په ډېر اهتمام سره عمل هم پرې کړی هغوی ته په عام عرف کې سنت ويل



کيږي او له دغونه ماسيوا ته نفلونه چې اصلي معنی يې «زوائد» دي او په احاديثو کې له فرضي لمونځونو پرته نورو ټولو ته نوافل ويل شوي دي بيا چې د کومو سنتونو يا نفلونو تر فرضو کولو مخکې تعليم شوی په ښکاره د هغوئ ځانګړی حکمت او مصلحت دا دی چې فرض لمونځ کوم چې د الله ستر دربار ته په ځانګړي توګه حاضري ورور ل دي «په همدې وجه هغه په ټولنيزډول په مسجد کې ادا کيږي» په دې له مشغوليدو مخکې لومړی په انفرادي توګه په دوه يا څلور رکعته کولو زړه له هغه دربار سره آشنا کړل شي او له ملائکو سره يو نږديکت او مناسبت پيدا کړل شي او د کومو سنتونو او نفلونو چې تر فرضو وروسته کولو تعليم ورکول شوی د هغوی حکمت او ګټه په ظاهره دا معلوميږي چې په فرضي لمونځ کې چې کومه نيمګړتيا راغلې وي د هغه جبيره به په وروستنيو سنتونو او نفلونو وشي د دې تائيد د حضرت ابو هريرة ؓ له حديث څخه کيږي هغه فرمايي ماله رسول الله څخه واوريدل چې د قيامت په ورځ به د بنده له اعمالو څخه تر ټولو مخکې د لمانځه حساب کيږي او د هغه د لمانځه لټه به کيږي که چيرې هغه سم وختی نو بنده به کامياب او بريالی شي او که چيرې هغه سم و نه ختی نو بنده به نامراد شی بيا که دده په فرضو کې کومه نيمګړتيا وه نو الله تعالی ﷻ به وفرمايي چې وګورئ آيا زما د بنده د اعمالو په ذخيره کې له فرضو پرته څه نکياني (سنتونه يا نفلونه) شته ترڅو په هغوئ دده د فرضو کمښت او نيمګړتيا پوره شي بيا به د لمانځه د نورو اعمالو حساب هم دارنګه کيږي

دسنتوانفلودکتې اوارزښت لپاره يوازې همدغه حديث کافي دی «معارف الحديث ج ۳ ص ۳۷۴ بحواله جامع ترمذي ونسائی».

## له وترووروسته دنفلو ثبوت

عن ام سلمة ﵂ ان النبی ﷺ كان يصلي بعد الوتر ركعتين. ژباړه: له حضرت ام سلة ﵂ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به له وتروروسته دوه رکعته نورکول.

ددې حديث روايت ابن ماجه هم کړی په هغه کې دازياتوب هم شتون لري چې ده مبارک ﷺ به تروترو وروسته دوه رکعته لنډلنډ کول له دې پرته له بي بی عائشه ﵂ اوابوامامه رضی الله عنهما څخه هم روايت دی دهمدغواحاديثو په اساس ځينې علماء له وترووروسته په ناسته دوه رکعته کول افضل بولي خونورشاغلي فرمايي چې په دې اړه دعاموامتيانوقياس پررسول الله ﷺ نشي کيدای په صحيح مسلم کې له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهماروايت دی چې هغه يوځل رسول الله په ناسته لمونځ کونکی وليدنو پوښتنه يې ځينې وکړه چې ماته خوچاستاسو په حواله ويلي ؤ چې په ناستې لمونځ دولاړې دلمانځه نيمې ثواب لري اوتاسويې په ناسته کوئ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو! مسئله هم هغه ده (يعني دناستې دلمانځه ثواب ... په مقابل نيم وي) خوپه دې اړه زه ستاسوپه رنګه نه ... ﷺ معامله جلا ده يعنی ماته په ناسته لمونځ کولوهم ... راکول کيږي ددې حديث په بنسټ زياتره علماداوينا کوي ... وروسته ... غودوورکعتونو لپاره کوم جلا اصول نشته



بلکه هم هغه عام اصول اوقاعده ده چې په ناسته کولوثواب دولاړې کولوپه مقابل کې نيم دی «معارف الحديث ج ۳ ص ۳۳۵».

## آياله وترو وروسته نفل صحيح دي

سوال: ځينې خلک وايي چې له وترو وروسته هيڅ يوه سجده نشته اوکوم نفل چې له وترو وروسته کيږي دهغوی کول جائزنه دي داخبره ترکومه سمه ده؟ جواب: له وترو وروسته نفلونه کول جائزدي لکه چې ځينواصحابو ﷺ چې دلماخستن له لمانځه وروسته وترکول اودشپې په اخرنی برخه کې به يې تهجد کول نومعلومه شوه چې له وترو وروسته نفل منعه نه دي اورسول الله ﷺ هم له وترو وروسته دوه رکعته نفل کړي دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۰».

## نفل ترڅه وخته پورې وي

سوال: له فرضو وروسته چې کوم نفل دي هغه له فرضو وروسته سمدستي کؤياچې ترڅووخت پاتې وي کولای يې شو؟ جواب: ترڅوچې دهغه لمانځه وخت وي ددغونفلونو وخت هم ترهغووي خو ورسره متصل (پيوسته) کول غوره دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۰۷ بحواله درمختار ج ۱ ص ۴۹۴ باب صفة الصلاة».

## له تراويحو وروسته دنفلو دجماعت څه حکم دی

سوال: آيادرې کسان له تراويحو وروسته دنفلو په جماعت کولوثواب حاصلولای شي؟ که نفلي لمونځ په جماعت سره له تراويحو وروسته مطلقاً صحيح نه دی اداکونکي که په شميردرې وي ياکه زيات؟ جواب: پرته له تراويحودنفلوجماعت سنت اومستحب نه دی بلکه په ځينوصورتونوکې مکروه اوځينوکې مباح

دی ځکه په دې کې د جماعت فضیلت او ثواب نه حاصلیږي که دوه
درې مقتدیان وي نو د جماعت اجازه شته خو د جماعت نه کول بیا هم
ښه دي ځکه نو مطلقاً د نفلو جماعت باید ونشي له درمختار څخه
معلومیږي چې له تراویحو پرته دې نور کوم نفل په جماعت نه کیږي
«فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۹ بحواله ردالمحتار باب الوتر
والنوافل ج ۱ ص ۲۲۳»

## کوم ځای چې نفل وکړي له هغه ځای جلا نفل کول څنګه دي

سوال: په احادیثو له فرضو وروسته په مسجد کې د نفلو او سنتو لپاره
ځای بدلول ثابت دي او کنه؟ او د نفلو لپاره د غه ځای بدلول په
مسجد کې مسنون دي که په کور کې هم؟ جواب: د شامي
او درمختار له عبارت څخه معلومیږي چې د احنافو په نزد د سنتو او هم
د نفلو لپاره ځای بدلول (مخته شاته کیدل) مستحب دي او د شامي له
عبارت څخه معلومیږي چې یوازې په کور کې لمونځ کونکي لپاره هم
د نفلو او سنتو لپاره ځای بدلول غوره دي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص
۲۳۰ بحواله ردالمحتار ج ۱ ص ۴۹۵ باب صفة الصلاة»

## دوه نفله همیشه کوي که کله ناکله یې پریږدي

سوال: په ماسپښین، ماښام او لماخستن کې له دوو رکعتو سنتو
وروسته دوه رکعته نفل کول آیا دا دوه رکعته باید همیشه وکړل شي
که کله ناکله پریښودل شي؟ جواب: په نفلو کې اختیار دی که
وغواړې پریښودلای یې هم شې او د نفلو په نیت همیشتوب هم پرې
کولای شې په دې کښې دا اندیښنه نشته چې ګواکې په همیشتوب به
فرض وګڼل شي خو بیا هم کله ناکله یې پریښودل غوره دي «فتاوی



دارالعلوم ج ۴ ص ۲۴۰ بحواله ردالمحتار باب الوتر والنوافل ج ۱ ص
۲۳۵»

## آیا نفل لمونځ په شروع کولو واجبیږي

سوال: یو چا نفل لمونځ شروع کړ کله یې چې یو رکعت پوره کاوه ورته
معلومه شوه چې جامې یې پلیتې دي لمونځ یې ترک کړ آیا د دې
لمانځه راګرزول واجب دي؟ جواب: مسئله داده چې نفل په شروع
کولو واجبیږي نو که چا نفلي لمونځ له شروع کولو وروسته په یو سبب
باندې ترک کړ نو په هغه د لمانځه راګرزول ضروري دي د فقهې په
کتابونو کې همداسې لیکل شوي دي خو په درمختار کې راغلي دي
چې که چیرې شروع له سره صحیح نه وي نو راګرزول واجب نه دي
ځکه چې د لمونځ کونکي جامې له سره پلیتې وې لهذا د دې لمانځه
راګرزول نه واجبیږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۳۵ بحواله
ردالمحتار ج ۱ ص ۴۴۵ باب الوتر النوافل»

## سنت او نفل په کور کې کول افضل دي که په مسجد کې

سوال: سنتونه او نفلونه په خپلو خپلو کورونو کې باید اداشي او که په
مسجد کې؟ جواب: په احادیثو کې چې د سنتو او نفلو په کور کې
کولو څه فضیلت راغلی دی هغه مشهور او معروف دی او فقهاؤ هم له
تراویحو پرته نورو نفلونو او سنتونو ته په کور کې کول افضل ویلي
دي او د دیوبند له اکابرو مثلاً د حضرت محدث فقیه
مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمة الله علیه عمل هم پر همدې لیدل شوی له
درمختار څخه معلومیږي چې د سنتو او نفلو لپاره کور افضل دی
خو که په لاره یا کور کې داویره وه چې زړه به خفه شي او خشوع به

حاصله نشي یا به دبې ضرورته خبرو له امله ثواب ته تاوان ورسیږي نو په داسې صورت کې په مسجد کې کول غوره دي که په مسجد کې په کولو د خشوع او اخلاص زیات والی راځي او یا کورته په تلو د ځنډېدو او نورو ویره وي نو بیا په مسجد کې کول افضل دی ځکه چې د خشوع او عاجزی لحاظ زیات دی کوم ځای چې دا حاصلیږي هغه افضل دی «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۲۷ و ج ۴ ص ۲۱۱ بحواله رد المحتار باب الوتر و النوافل ج ۱ ص ۲۳۸»

## له وترو وروسته نفل په ناسته کول په کار دي که په ولاړه

سوال: له وترو وروسته دوه رکعته نفل په ناسته وکړو که په ولاړه له رسول الله ﷺ څخه څرنګه ثابت دي ؟ جواب: نفل په ناسته کول یا په ولاړه دواړه رنګه صحیح دي خو په ولاړه کولو کې یې د ناسته په نسبت دوه چنده ثواب دی او رسول الله ﷺ په ناسته کړي خو هغه ته په ناسته کولو کې هم پوره ثواب ور کول کېده لیکن نورو ته په ناسته کولو کې نیم ثواب ور کول کیږي دا خبره له احادیثو څخه ثابته ده «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۳۳۱ بحواله رد المحتار ج ۱ ص ۲۵۳ باب الوتر و النوافل»

په ناسته د کولو جواز په هغه صورت کې دی چې په ناسته کولو کې کوم داسې التزام نه وي چې ور څخه کتونکیو ته په ناسته کولو څخه د سنت والي یا واجب والي ګمان پیدا شي لکه چې په ځینې ځایونو کې له ماسپښین او ماښام څخه وروسته په خلکو کې دوه رکعته په ناسته کول رواج شوي دي د هغو سیمو عوام دغه نفل په



ناسته کول شرعاً لازم ګڼي په داسې سیمو کې په ناسته کول بې له شکه مکروه دي «فتاوی دار العلوم ج ۴ ص ۲۱۲»

## د حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله رایه

د دار العلوم دیوبند له تهداب ایښوونکی حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله څخه نقل دی چې که نفل په دې نیت په ناسته وکړي چې له رسول الله څخه همداسې منقول دي نو عجبه نه ده چې انشاالله په دې نیت به په ثواب کې کوم کمی رانشي «امداد الفتاوی ج ۱ ص ۴۷۵»

## د معذور رعایت

د ولاړې د توان درلودلو سره نفل لمونځ په ناسته کول جائز دي خو د دي ثواب به د ولاړې د لمانځه د ثواب په مقابل کې نیم وي مګر د عذر له امله یعني معذور ته په ناسته هم د ولاړه لمونځ کونکي په شان ثواب ور کول کیږي په ناسته کولو صحیح طریقه داده چې لکه څنګه چې د التحیات ویلو لپاره سړی کښیني همدا رنګه دې کیني او په ولاړه نفل شروع کول وروسته بیرته په ناسته پوره کول بې له څه کراهته جائز دي «نور الایضاح ص ۹۷»

## د نبی اکرم ﷺ نفل په ناسته کول د امت د تعلیم لپاره دي

سوال: له وترو وروسته دوه رکعته نفل په ولاړه کول په کار دي که په ناسته ؟ د رسول الله ﷺ عمل څه ؤ ؟ ده مبارک په ولاړه کول که په ناسته ؟ جواب: له وترو وروسته دوه رکعته نفل په ولاړه کول افضل دي د رسول الله ﷺ ارشاد دی چې په ناسته نفل کونکي لپاره نیم ثواب دی او له رسول الله ﷺ څخه دواړه ډوله ثابت دي خو رسول الله ﷺ ته په

ناسته کولو کې هم پوره ثواب ورکول کيدى دادهغه مبارک ﷺ
ځانګړتياوه ځکه چې په دې کتبې دامت لپاره داتعليم ؤ چې دريدل
فرض نه دي اوامت ته تعليم ورکول له واجباتو څخه دي نودرسول
اللهﷺ په ناسته نفل کولو کې هم دواجب ادا ينه ده دکوموچې ثواب له
نفلوزيات دى البته له ځينې بزرګانو څخه منقول دي چې که
دسنتو اتباع کونکي له وترو وروسته دوه رکعته کله ناکله په دې نيت
په ناسته وکړي چې رسول اللهﷺ په ناسته کول زه يې هم دهغه په
پيروي سره په ناسته کوم نوعجبه نه ده چې ده ته دده دنيت سره سم
پوره ثواب ورکول شي خوله حديث شريف څخه ثابتيږي چې په ولاړه
کونکى دپوره اوپه ناسته کونکى دنيمي ثواب حقداردى «فتاوى
رحيميه ج ۳ ص ۲۵»

## نفل نن هم په ناسته کولاى شي

سوال: په کتاب کې مې داسې مسئله وليده چې له وترو وروسته نفل
په ناسته کول سنت دي ځکه چې درسول اللهﷺ همدغه طريقه وه
آيادامسئله صحيح ده؟ جواب: حامداً ومصلياً رسول اکرمﷺ
فرمايلي دي: چې په ولاړه کونکي ته دوه چنده ثواب ورکول کيږي
اوپه ناسته کونکي ته نيم ثواب ورکول کيږي بيارسول اللهﷺ وليدل
شو چې په ناسته نفل کوي نوپوښتنه ورځينې وشوه ده مبارکﷺ
وفرمايل: ماته هغومره ثواب راکول کيږي څه کمبود نه په کې راځي،
له وترو وروسته دوه رکعته نفل له رسول اللهﷺ څخه په ناسته کول
ثابت دي عام معمول يې داؤچې دتهجدد پراوږد لمونځ به يې په ولاړه
کاوه چې پښې مبارکې به يې وپړسيدې له دې وروسته



دسهار سپيدو ته نږدې به يې وترکول بيابه يې په ناسته دوه رکعته
نفل کول اوس هم که کوم شخص دغه طريقه غوره کړي چې
اوږد تهجد وکړي ترپنځه شپږپارو ويلو وروسته وتروکړي اوستړى
شي وروسته دوه رکعته نفل په ناسته وکړي نوپه دې کې زياته اتباع
ده «فتاوى محموديه ج ۲ ص ۱۷۵ بحواله ابوداؤد شريف ج۱ ص ۱۳۷
په فتاوى محموديه کې راغلى دي چې بيله عذره په ناسته نفل کول
صحيح دي خوپه ولاړه کولوکې ثواب زيات دى له وترو وروسته دوه
رکعته نفل کول په حديث اوفقه ثابت دي که څوک يې وکړي ثواب به
ومومي که نه يې وکړي نوګنهګارنه دى پرهغه اعتراض اونيوکه کول
نه دي په کارهځول يې صحيح دي «فتاوى محموديه ج ۲ ص ۱۲۸
بحواله طحطاوي على مراقى الفلاح ص ۳۲۷»

## په ناسته لمونځ کونکى به چيرې ګوري

سوال: په ناسته دنفلي لمونځ کولو پرمهال دسجدې پرځاى نظرساتل
غوره دي که سينې اوغيږې ته؟ جواب: حامداً ومصلياً سينې
اوغيږې ته کتل مناسب دي «فتاوى محموديه ج ۲ ص ۱۵۷ بحواله
شامي ج۱ ص ۳۲۱»

## ضميمه

## تراويح شل رکعته هم سنت دي

دشلو رکعتو پرمؤکد سنتوالي اجماع شوې ده اوداجماع مخالفت
ناروادى اودغه اجماع ددغواحاديثو دمنسوخيدو نښه ده اوکه په
اجماع کې شبه ده ځکه چې ځينې علماؤ صرف اته رکعته مؤکد سنت
ليکلي دي نوځواب دادى چې اجماع له دې قول څخه مخکې منعقده

شوي نو د اجماع په مقابل کې شاذ قول ته اعتبار نشته کله چې
تاکيد ثابت شو نو ددې په ترک به عتاب او ترټنه راځي.

يوه کس دډيلي له نوي مجتهدينو څخه دا ته ۸ رکعته
تراويحو واوريدل مولانا شيخ محمد صاحب رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ته راغلی
اوشکمن وو چې آيا اته رکعته دي که شل نوي مجتهدين ځان ته په
حديث عمل کونکي وايي ليکن صاحبه ! په حديث کښې خوشل هم
راغلي دي په هغه دوی ولې عمل ونکړ ترڅو يې په ضمن کې په اتو هم
عمل شوی وای خبره داده چې نفس ته هوسايي خو په اتو کې ده شل
ولې وکړي ؟ اصل خبره داده چې دوی ته څه نفس ووايي هغه کوي
شاذ او ضعيف حديث هم خپلوي همدارنګه دوی هم د تراويحو له ټولو
احاديثو څخه صرف داتو رکعتو حديث خوښ کړ حال دا دی چې
ذوولس هم راغلي او دوترو له ټولو احاديثو څخه يې ديوه رکعت
حديث خوښ کړ حال دا دی چې درې رکعته هم راغلي پنځه هم راغلي
اووه هم راغلي خير هغه بې چاره خو د دوی په دوکه کولو شکمن شوی
ؤ نو له مولانا څخه يې پوښتنه وکړه مولانا ورته وفرمايل: چې وروره
واوره که دمال له محکمې څخه خبر راشي چې ماليه داخله کړئ تا ته
معلومه نوي چې څومره ده تاله يوه مشر څخه وپوښتل چې
پر ما څومره ماليه ده هغه وويل: اتلس روپۍ بيا دله بل مشر څخه
پوښتنه وکړه هغه وويل شل روپۍ نو اوس ته راته ووايه چې ته به
محکمې ته څو روپۍ وړې هغه وويل شل که دومره وي نو له بل څخه
[illegible]تنه نه وي او که کمې وي نور روپۍ به راپاتې شي او که ماکمې
[illegible] او هلته يې زياتې غوښتې نو له چا به يې اخلم مولانا ورته وويل



ښه ځان پوه کړه که هلته د شلو رکعتو نو غوښتنه وشوه او ستا سره اته
وي نو له کوم ځای به يې راوړې او که درسره شل وي او غوښتنه
دلږوه نو نورې به باقي پاتې شي او هغه به ستا په کار راشي هغه
وويل سمه ده اوس به زه شل رکعته تراويح هميشه کوم زه بالکل
ډاډمن شوم سبحان الله څه ډول يې پوه کړ په حقيقت کې د اخلک
دامت حکيمان وي «ب» په اوس وخت کې ددې د ثابتولو څېړنه
مونږ نه کوو بلکه د عمل لپاره مونږ ته همدومره کافي ده چې د حضرت
عمر رضی الله عنه په زمانه کې شل رکعته تراويح او درې رکعته وتر په جماعت
سره اداکيدل ، دا روايت په مؤطا امام مالک کې که څه هم منقطع دی
خو عملاً متواتر دی دامت عمل دی متواتر کړ بس د عمل لپاره
همدومره کفايت کوي. وګورئ که څوک درملتون ته
ددوا اخيستلو لپاره ولاړ شي نو له هغه دا پوښتنه نه کوي چې دوا له
کوم ځای څخه راغلې او ددې څه ثبوت دی چې دا هماغه دوا ده چې زه
يې غواړم بلکه که په دې کښې يې شک هم وي نو يو دوه يوه کسانو ته
په ورښکارولو ډاډمن کيږي اوس که څوک ډاکټر ته ووايي چې
زما اطمينان هله کيږي کله چې ته ماته د پلورونکي لاس ليک
راښکاره کړې چې تا له هغه د غه دوا رانيولې نو خلک به دا وايي چې
ده ته د دوا ضرورت نشته که يې اخلې وايي خله که نه پريږده
همدارنګه محقيقين علما هم داسې وو چې هغوی د مدعي لپاره خپل
ماغزه نه خوړل مسئله به يې ورته وړاندې کړه که به چا په هغې کې
حجتونه راايستل نو صفا به يې ورته ويل چې له کوم بل چا څخه
تحقيق وکړه چې ستا پرې باور وي زمونږ سره د څېړنې وخت نشته

ددې جواب حاصل هم هغه ځګړه ختمول دي چې فضول بحثونه
دغوښاغليو نه خوښول که چيرې عوامو ته وښودل شي چې په حديث
کې داراغلي نودوی ته به داستنباط علم له کومه وي په دې کښې به
دوی بيافقهاؤته اړوي نواول دفقهاؤپه بيان باندې ولې باورنه کوی
لنډه داچې دعمل لپاره خودتراويحودومره ثبوت بس دی چې رسول
الله ﷺ قولاً دامسنون فرمايلي دي اودحضرت عمرؓ په زمانه کې
اصحابو کرامو ؓ عملاً دتراويحوشل رکعتونه کول دعوامولپاره
دومره بس دي تردې زيات تحقيق دعلماؤمنصب دی «اشرف الجواب
حصه دوم ص ۱۴۵»

## دتلاوت دسجدې شرعي حيثيت

مسئله: دتلاوت سجده دسجدې دآيت پرويونکي اواوريدونکي
واجبيږي که کوم څوک دتلاوت دسجدې پرواجبيدوسجده ونکړي
نوګنګاريږي اوس ددې واجب په ادا ينه کې يوځای دوخت پراخي ده
اويوځای تنګي ده نوکه چيرې دتلاوت سجده له لمانځه بهرواجب
شوه نودهغه دادا ينې په وخت کې پراخي ده يعني دژوند ترپايه دهغه
اداکولواجازه شته اودسجدې نه کولو ګنګارترمرګه نشي ورته ويل
کيدای خوبياهم په سجده تلاوت کې ځنډ کول تنزيهي مکروه دي
خوکه دتلاوت سجده په لمانځه کې واجب شي يعني په لمانځه کې
دننه دسجدې آيت وواېونوسمدستي سجده کول واجب دي
دسمدستي مطلب دادی چې دسجدې دآيت دويلواوسجده
کولوترمنځ دومره ځنډنه وي چې پکې درې آيتونه ويل کيدلای شي
که په سجده تلاوت کې دومره ځنډوي نوسمدستي اداکول نشول.



مسئله: دسجدې آيت به يادسورت په مينځ کې وي ياپه پای کې که
چيرې په مينځ کې وي نوافضل داده چې دسجدې دآيت دلوستلوسره
سم يعني له سورت ختمولو مخکې سجده تلاوت وکړي بياولاړشي
اوسورت پوره کړی بيارکوع ته لاړشي.

مسئله: که يې دسجدې آيت ولوست سجده يې ونکړه خودسمدستي
له بيان شوي مودې تيريدو مخکې يې رکوع وکړه اوپه رکوع کې يې
دسجدې نيت هم وکړ نوجائزدي لکه څنګه چې په لمانځه کې دننه
بيله نيت هم سجده رواکيږي کله چې دسمدستي په موده کې دننه وي
دسمدستي له مودې تيريدو وروسته دلمانځه په رکوع ياسجده
کولو سجده تلاوت نه ساقطيږي اوپه لمانځه کې دننه ددې قضاء
ددې آيت لپاره خاصه سجده کول دي.

مسئله: که لمونځ ختم شو اوسجده تلاوت يې ونکړه نواوس ددې
قضانشته ځکه چې دقضاء وخت تيرشو البته که سلام وګرزوي
لمونځ يې ختم کړاوله هغه وروسته کوم دلمانځه ضد کارځيني ونشو
(کوم داسې کاراوفعل يې ونکړ چې لمونځ په ماتيږي) نوله سلام
وروسته دې دتلاوت سجده وکړله شي اوپه هغه صورت کې کله چې
آيت دسجدې دسورت په پای کې وي نوغوره داده چې ددې له ويلو
وروسته رکوع وکړي اوله هغې سره دې دسجده تلاوت نيت هم
وکړي خوکه يې سجده تلاوت وکړه اورکوع يې ونکړه بلکه
بياودريدی نومستحب دادي چې دراتلونکي سورت څوآيتونه
ووايي رکوع وکړي اولمونځ پوره کړي «کتاب الفقه ص ۷۴۲ لومړی

ټوک وفتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۲ وآپ کی مسائل ص ۸۴ ج ۴
وعالمګیري ج ۱ ص ۸۵ وبحرالرائق ص ۱۲۲ ج ۲»

## دتلاوت دسجدې شرطونه

مسئله: دسجده تلاوت هم هغه شرطونه دي کوم چې دلمانځه دي پرته له تکبیرتحریمه اودوخت دتعینولوله نیته چې دادواړه شیان په دې کې شرط نه دي په دې کښې نیت نه تړل کیږي دسجده تلاوت واجبیدوشرطونه دادي: مسلمان به وي، بالغ به وي، عقل به يې صحیح وي، که ښځه وه له حیض اونفاس څخه به پاکه وي، داهغه شرطونه دي چې دلمانځه لپاره دي ځکه نودتلاوت سجده پرکافر، کوچني، لیوني، یادحیض اونفاس په حالت کې جائزنه ده په دې مسئله کې دسجدې دآیت ویونکي او اوریدونکي ترمنځ توپیرنشته البته له پورته بیان شویو اشخاصو څخه که کوم یو دسجدې آیت واوري اودقضاء یااداء په توګه دسجدې د اداکولو اهل وي نوپرهغه سجده واجبیږي ځکه نوکوم شخص چې دنیشې یاپلیتی په حالت کې وي پرهغه دتلاوت سجده واجبیږي ځکه چې دی دقضاء په توګه دااداء اهل دی هو که لوستونکی کوم لیونی ؤ نودهغه له خولې په اوریدوسجده تلاوت نه واجبیږي.

مسئله: همدغه حکم له هغه ماشوم څخه داوریدودی چې دشعورحدته نوي رسیدلی ځکه چې دتلاوت صحیح کیدولپاره تمیزیعنی شعوراوپوهه شرط ده.

مسئله: همدارنګه له انسان پرته که دسجدې آیت دکوم بل چاڅخه واوریدل شي مثلاً طوطي دسجدې آیت ولولي یاله ضبط الصوت آله



(ټیپ) اونوروڅخه یې واوري نوسجده تلاوت نه واجبیږي ځکه چې دلاشعوره شیانو تلاوت له سره صحیح نه دی.

مسئله: داحنافواوشوافعوپه نزدپه دې کې اراده شرط نه ده یعني که دتلاوت دسجدې داوریدواراده یې نه وي هم بیاهم سجده تلاوت وربانديواجبیږي «کتاب الفقه ج ۱ ص ۷۴۷ وعلم الفقه ص ۱۷۸ ج ۲»

مسئله: که له ماشین یامرغه څخه دسجدې آیت واوري نوسجده نه واجبیږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۵»

مسئله: بې دتلاوت له نیته که دسجدې آیت ووایي نوهم سجده وجبیږي «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۲۵»

مسئله: دسجده تلاوت په نیت کې دآیت معلومول شرط نه دي چې داسجده دفلاني آیت په سبب ده «علم الفقه ص ۱۷۸ ج ۲»

مسئله: په کوموشیانوچې لمونځ فاسدیږي په هغوی سجده تلاوت هم فاسدیږي اوبیاددې راګرزول واجبیږي هودومره فرق دی چې په لمانځه کې په قهقه خندا اودس ماتیږي اوپه سجده تلاوت کې وربانديې نه ماتیږي دمیرمنې محاذات (په برابري دریدل) هم په سجده تلاوت کې فسادنه راولي «علم الفقه ص ۱۷۹ ج ۲»

مسئله: دسجدې آیت که په فرضي لمونځ کې وویل شي نودهغه په سجده کې دلمانځه دسجدې په څیر سبحان ربی الاعلی ویل غوره دي اوپه نفلي لمونځوکې یاپه خارج دلمونځوکې که وویل شي نودهغوی په سجده کې اختیاردی چې سبحان ربی الاعلی وایي یانورتسبیحات کوم چې په حدیثوکې راغلي دي هغه وایي ددې تسبیح په رنګه: سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهُ وَصَوَّرَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ

بِحَوْلِهٖ وَقُوَّتِهٖ فَتَبَارَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ که چیرې سبحان ربي الاعلی اودغه تسبیح دواړه ووایي نونورهم بهتردي «علم الفقه ص ۱۸۱ ج ۲ وکتاب الفقه ص ۷۵۳ ج ۱»

## دتلاوت دسجدې د واجبیدو اسباب

مسئله: دسجده تلاوت دواجبیدو درې سببه دي: اول تلاوت لهذا دقران کریم پرتلاوت کونکي دتلاوت سجده واجبیږي که څه هم ده په خپله دسجدې آیت نه وي اوریدلی لکه چې څوک کوڼ وي په دې سره توپیرنه راځي چې سجده تلاوت په لمانځه کې دننه ویل شوي وي یادباندې امام ویلي وي یا منفرد (یوازې لمونځ کونکی) خو مقتدي که دسجدې آیت په لمانځه کې دننه یعنی په امام پسې په جماعت کې ووایي نو پرده دتلاوت سجده نه واجبیږي ځکه چې په امام پسې دقران کریم ویل منع دي ځکه نو په دې حال کې دسجدې دآیت په تلاوت سجده نه واجبیږي هو که خطبه ویونکی دجمعې یا اختر په ورځ په خطبه کې دسجدې آیت ولولي نو سجده دتلاوت پرده او اوریدونکو واجبیږي په داسې صورت کې خطیب ته په کاردي چې له منبره کوزشي سجده وکړي او اوریدونکي هم له ده سره سجده وکړي خو بیاهم دخطبې پرمهال دامام پرمنبر دسجدې آیت ویل مکروه دي خو په لمانځه کې دننه دتلاوت سجده مکروه نه ده کله چې دتلاوت سجده درکوع او سجدې په ضمن کې اداکړل شي که یې صرف سجده تلاوت یوازې وکړه نو مکروه دي ځکه چې په داسې کولو دشاته لمونځ کونکیو تشویش پیدا کیږي «کتاب الفقه ص ۷۵۱ ج ۱» یعنی که امام دجمعې یا اختر په لمانځه کې دسجدې آیت تلاوت



کړ نو جلا دې سجده نه اداکوي بلکه په سجده کې دې دسجده تلاوت نیت هم وکړي که جلا یې اداکوي نو دخلکو په دې غونډه کې ګډوډي راځي عوامو ته به معلومه نه وي چې دا دتلاوت سجده وه ځکه چې مسئله داده چې که دجمعې یا اختر په لمانځه کې ګڼه ګوڼه زیاته وي نو غوره داده چې سجده تلاوت ونه کړي ترڅو لمونځکیو ته تشویش نه وي «کتاب الفقه ص ۷۴۲ ج ۱»

۲ دوهم سبب دسجدې دآیت له کوم بل چاڅخه اوریدل دي اوس دغه اوردونکی خو به یا په لمانځه کې وي یا به نه وي که په لمانځه کې وي که منفرد وي او که مقتدي پرهغه دصحیح قول مطابق سجده واجب ده چې له لمانځه وروسته دتلاوت سجده وکړي خو که چا دتلاوت سجده له مقتدي څخه واوریده نو سجده دتلاوت نه واجبیږي داحکم په هغه صورت کې دی کله چې کوم مقتدي له خپل امام پرته دباندې لخوا دتلاوت سجده واوریده که له امام څخه یې واوریده او مقتدي له اول رکعته ورسره شریک دی نو دتلاوت په سجده کې دامام پیروي لازمه ده او که چیرې مسبوق وي له څو رکعتونو وروسته په جماعت کې برخه اخیستونکی وي دتلاوت له سجدې مخکې له امام سره په لمانځه کې شریک شوی دی بیاهم دامام په پیروي کې ده ته سجده کول په کاردي او که کوم څوک دامام له سجده کولو وروسته په همدغه رکعت کې شامل شو چې په کې دسجدې آیت ویل شوی دی نو قطعاً به سجده دتلاوت نه کوي هو که له دې څخه په وروسته رکعت کې شامل شوی وي نو له لمانځه وروسته دې دتلاوت سجده وکړي ۳ دریم سبب مقتدی کیدل دي چې که امام دسجدې آیت

تلاوت کړ نو پر مقتدي دهغه اداکول واجب دي که څه هم هغه
اوریدلی نه وي «کتاب الفقه ص ۷۵۲ ج ۱ وعلم الفقه ص ۱۷۷ ج ۲»
مسئله: ځیني میرمنې دحیض یانفاس په حالت کې هم دسجدې دآیت
په اوریدو پرځان سجده واجب ګڼي داغلطه خبره ده که چیرې دحیض
یانفاس په حالت کې له چاڅخه یې دسجدې آیت واورید نو پردوی
سجده واجب نه ده «بهشتی زیور ص ۴۲ ج ۲»

## دتلاوت دسجدې اړوند مسئلې

مسئله: دیوه آیت په تلاوت یوه سجده واجبیږي خودمجلس په بدلون
که بیاهغه آیت ولولې نودهغه سجده جلاواجبیږي «آپ کی مسائل ج
۳ ص ۸۴»
مسئله: که چارپایي سخته وي چې تندی نه پرې ننوزي اوپرهغه پاک
ټوکرهم غوړیدلی وي( کله چې چارپایي پلیته وي ) نوپرچارپائی
دتلاوت سجده اداکیدلای شي کنه نه شي اداکیدای.
مسئله: دتلاوت په دوران دسجدې آیت سوکه ویل غوره دي
ترڅوپرنورو سجده واجب نشي «آپ کی مسائل ص ۸۶ ج ۳»
مسئله: استاذشاګردانو ته دسجدې یو آیت جلاجلاوایي نویوه سجده
ځیني کول غواړي په دې شرط چې مجلس یووي خوداستاذ چې له
څومره ماشومانو څخه دسجدې آیت اوري هغومره سجدې
داوریدوپه وجه واجبیږي.
مسئله: که دوه کسه دسجدې آیت ووایي نو پردواړودوې سجدې
واجبیږي یوه دپه خپله ویلو دوهمه داوریدو «آپ کی مسائل ص ۸۷
ج ۳»



چاچې دسجدې آیت تلاوت کړی وي دهغه په اداکولو سجده تلاوت
اداکیږي کوم بل څوک یې دده پرځای نشي اداکولای «آپ کی مسائل
ج ۳ ص ۸۹»
مسئله: دچاغوږته دسجدې آیت ورسیدی هغه که داوریدو قصد کړی
وي او که نه یې وي کړی سجده تلاوت ورباندې واجبیږي په دې شرط
چې ورته معلومه شي چې دسجدې آیت وویل شو که ټیپ شوي
تراویح دوهم ځل په رادیو ،یاټیې وي کې خپرېږي شي اودسجدې آیت
واوریدل شي نوسجده نه واجبیږي همدارنګه که میرمنې په خاص
ورځو(حیض اونفاس ) کې له چاڅخه دسجدې آیت واوري نوسجده
ورباندې واجب نه ده «آپ کی مسائل ص ۸۸ ج ۳»
مسئله:په ټیپ دسجدې دآیت په اوریدوسجده نه واجبیږي «آپ کی
مسائل ج ۳ ص ۸۸»
مسئله: که چاپه لاوډ سپیکرکې دقران تلاوت واورید اوپه هغه کې
سجده راغله نو پراوریدونکي کله چې اوریدونکي ته معلومه وي
چې داآیت دسجدې دی سجده پرې واجب ده «آپ کی مسائل ص ۸۷
ج ۳ مسئله: له رادیو څخه دسجدې دآیت پراوریدونکیو سجده
واجبیږي ځکه چې داد ویونکي آوازدی اوله میګرافون څخه چې کوم
اوازراوزي هغه یې دتلاوت عکس اونقل لیکلی دی «فتاوی
محمودیه ص ۲۲ ج ۱۲»
مسئله: که چامرغه ته دسجدې آیت ورزده کړ دهغه په ویلوهم
پراوریدونکیو دتلاوت سجده نه واجبیږي ځکه چې دمرغه لوستل
صحیح تلاوت نه دی همدارنګه که چادسجدې آیت تلاوت کړبل

سرې په خپله خودده تلاوت وانه وريدی خودهغه آوازله غره يادېوال
ياګنبدې سره ټکرشو دده غوږوته راورسيدی نوددې آذانګې په
اوريدوهم سجده تلاوت نه واجبيږي.

لنډه داچې اصول دادی چې دصحيح تلاوت په اوريدودتلاوت
سجده واجبيږي دټيپ دکيسټ اوفيتې اوازتلاوت نه دی ځکه دهغه
په اوريدودتلاوت سجده نه واجبيږي (صحيح تلاوت نه دی )
اوسپيکرآوازترليرې بيايي اوکوم آوازچې مقتديانوته وررسي هغه
هم هغه رنګه دامام دتلاوت اوتکبيراوازوې ټيپ ددې په خلاف دی
ځکه چې ټيپ اوازخوندي کوي اوس چې کوم کسټ ولګول شي
داهغه تلاوت عکس دی کوم چې پرکيسټه کې صوت شوی دی
داپه خپله تلاوت نه دی ځکه يوپربل قياسول صحيح نه دي «آپ کی
مسائل ص ۲۳۱ ج ۳ » مسئله: په زړه کې دسجدې دآيت په ويلوسجده
نه واجبيږي ځکه چې تلاوت کول ضروري دي له تلاوت پرته سجده
نه واجبيږي (په ژبه ويلوواجبيږي ) «فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۲ ج ۴
بحواله درمختارص ۵۵ ج ۱ وفتاوی محموديه ص ۲۲ ج ۲»

مسئله: په يوه عامه غونډه کې ديوواعظ( نصيحت کوونکي) څخه
دسجدې آيت واوريدل شي نوټول اوريدونکي دې جلاجلاسجده
وکړي ځکه چې دسجدې دآيت په اوريدواولوستلوسجده واجبيږي
«فتاوی دارالعلوم ص ۴۳۲ ج ۴ بحواله درالمحتارص ۷۱۷ ج ۱»

مسئله: دټول قران مجيددتلاوت سجدې (څورلس سجدې ) په پای
کې که يوځای وکړي نوداهم جائزدي اوغوره داده چې په هغه وخت
يې وکړي «فتاوی دارالعلوم ص ۲۷ ج ۴ بحواله ردالمحتارص ۷۲۱ ج ۱

خودځنډولوګنجائش هغه وخت دی کله چې دتلاوت سجده په
لمانځه کې نه وي ځکه چې په لمانځه کې خوبه يې سمدستي اداکوي
«مرتب رفعت قاسمي غفرله»

مسئله: دلمرختو، لويدواوزوال پروخت دتلاوت سجده هم حرامه ده
مګرچې کله دسجدې آيت په دغووختونوکې ووايي نوسجده هم په
دغووختونوکې صحيح ده اودسهارله لمانځه وروسته
ترلمرختوپورې اودمازديګرله لمانځه وروسته ترلمرلويدوپورې
اودسهاردسپيدوپروخت دتلاوت سجده هم صحيح ده (کوم وخت
چې په همدغه وختوکې دسجدې آيت تلاوت کړل شي ) «فتاوی
دارالعلوم ج ۴ ص ۴۳۱ وآپ کی مسائل ص ۸۵ ج ۳ »

مسئله: پراوريدونکيوسجده واجبيږي که هغوی ونکړه په
لوستونکيوهيڅ ګناه نشته اولوستونکي داوريدونکيوپرځای
دتلاوت سجده نشي کولای «فتاوی دارالغلوم ص ۴۳۱ ج ۴ »

مسئله: بې اودسه دتلاوت سجده جائزنه ده «فتاو دارالعلوم ج ۴ ص
۴۲۷ »

مسئله: که چاپه لمانځه کې دتلاوت سجده وويله اوسجده يې وکړه
بياپه کومه وجه دلمانځه دراګرزولواړتياشوه اوبيايې هغه آيت
تلاوت کړنودوهم ځل بله سجده کول په کاردي «فتاوی دارالعلوم ج
۴ ص ۴۲۸ »

مسئله: دسجدې آيت يې ولوست سجده يې وکړه چې ولاړشو پرمخ
څه په يادنه ورتلونوکه رکوع ته ولاړشي څه پروانه لري لمونځ صحيح
دی «فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۳۲ »

مسئله: که کوم څوک دسجدې آيت وليکي ياپې په زړه کې ووايي په ژبه يې ونه وايي ياېې يويو حرف کړي يعني هجا اوتوري ووايي نوآيت په يو ځل اونه وايي ياهمدارنګه يې له چاواوري نوپه دې ټولو صورتونو کې دتلاوت سجده نه واجبيږي «علم الفقه ج۲ ص ۱۷۸»

مسئله: دچا په ذمه چې دتلاوت سجدې وي دهغه دااکيد وصورت دادی چې اندازه دې ولګوي بيادهره ورځ چې څومره يې وس وي دقضا په نيت دسجدې کوي ددې کفاره همدغه ده چې سجدې وکړي «فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۴۲۹ بحواله ردالمحتار ص۷۲۱ ج۱»

مسئله: دجمعې ،اخترانو اوسوکه قرائت ويلو په لمنځونو کې دسجدې آيت ويل نه دي په کار ځکه چې ويره شته چې مقتديانو ته اشتباه پيداشي «علم الفقه ص۱۸۱ ج۲»

مسئله: دتلاوت سجده پرهغو خلکو واجبيږي چې لمونځ وربانديې واجب وي په اداسره ياقضاء سره پرحائضه اونفاسه ميرمنو،پرنابالغ اوليوني واجب نه ده هغه ليونی چې ليونتوب يې تريوه شپه اوورځ زيات وي له هغه وروسته که ليونتوب زائل شي اوکنه اودکوم سړي چې ليونتوب تريوه ورځ اوشپه کم وي پرهغه واجب ده همداسې پرمست اوجنب هم واجب ده «علم الفقه ص ۱۷۸ ج۲»

[illegible]ئله: که يوشخص دخوب پرمهال دسجدې آيت تلاوت کړ [illegible]ال سجده ورباندې واجب ده کله چې په دې پوه شي [illegible]کې داآيت تلاوت کړ «علم الفقه ص۱۷۷ ج۲



مسئله: دسجدې د آيت له کوم انسان څخه اوريدل که پوره آيت واوري ياصرف دسجدې لفظ دمخکښې ياوروستنې يوه لفظ سره واوري هغه که په عربي وي ياپه کومه بله ژبه وي که اوريدونکي ته دامعلومه وي چې داترجمه دسجدې دآيت ده اوکه نه وي ورته معلومه خودناخبرتياپه صورت کې چې دسجدې په اداکيدو کې څومره ځنډراشي په هغه کې دی معذوربلل کيږي «علم الفقه ص ۱۷۷ ج۲»

مسئله:له مقتدي څخه که دسجدې آيت واوريدل شي نوسجده نه واجبيږي نه پرده نه پردغه امام اونه په هغه خلکو کوم چې په دې لمانځه کې شريک وي هو ! که کوم خلک له دې امام سره په لمانځه کې شريک نه وي خواه که هغوی لمونځونه نه کوي ياکوم بل لمونځ اداکوي نوپردوی سجده واجبيږي «علم الفقه ص ۱۷۸ ج۲»

يعني يومقتدي په زوره دسجدې آيت دامام شاته ولولي نوسجده دتلاوت نه واجبيږي صرف چې په جماعت کې ورسره شريک نه وي پرهغه خلکو واجبيږي «محمدرفعت قاسمي»

مسئله: دتلاوت په سجده کې نيت نه تړل کيږي بلکه دسجدې په نيت دې الله اکبرووايي سجدې ته دې لاړشي اوبيادې الله اکبرووايي راپورته دې شي دسلام ګرځولو هم ضرورت نشته اوپه ناسته دتلاوت سجده کول هم جائزدي خوله ولاړې څخه تلل افضل دي «آپ کی مسائل» ص ۸۴ ج ۳»

مسئله: ځينې خلک سجده تلاوت وکړي دواړو لوروته سلام ګرځوي داغلط دي يعنی سلام اړولوته اړتيانشته «اغلاط العوام ص ۷۴»

مسئله: علماؤ لیکلي چې که کوم شخص د سجدې د ټولو آیتونو تلاوت په یوه مجلس کې وکړي نو الله تعالی ﷻ د ده مشکل لرې کوي او په داسې حالت کې اختیاردی چې ټول آیتونه په یو ځل ووایي او له هغه وروسته څورلس سجدې وکړي یا له هر یوه ویلو وروسته د هغه سجده وکړي «علم الفقه ج ۲ ص ۱۸۱»

مسئله: د خارج د لمانځه سجده په لمانځه کې او د لمانځه سجده د لمانځه د باندې بلکه په نورو لمونځو کې هم نشي اداکیدای نو که کوم شخص په لمانځه کې د سجدې آیت ولولي او سجده کول یې هیر شي نو د هغې ګناه پرده پاتیږي چې اوس پرته له توبې کښلو بله لاره نلري یا یې ارحم الراحمین په خپل فضل معاف کړي.

مسئله: که کوم څوک په لمانځه کې د کوم بل چا څخه د سجدې آیت واوري که څه هم هغه بل هم په لمانځه کې وي نو دا سجده د لمانځه د باندې ګڼله کیږي په لمانځه کې د ننه به یې نه اداکوي بلکه له لمانځه بهر به یې اداکوي «علم الفقه ص ۱۷۹ ج ۲»

مسئله: د لمانځه سجده په خارج د لمانځه کې هغه وخت نشي اداکیدلای کله چې لمونځ فاسد نه وي که فاسد شي او د هغه فاسدونکي د حیض راتلل نه وي نو هغه سجده به په خارج کې اداکوي او که د حیض له امله په لمانځه کې فساد راغلی نو دغه سجده معافیږي.

مسئله: د ټول سورت تلاوت کول او د سجدې آیت پریښودل غلط دي صرف له سجدې څخه د ځان ژغورنې لپاره دي د سجدې آیت نه



پریږدي ځکه چې په دې له سجدې کولو څخه ګویا انکاردی «بهشتي زیور ص ۲۵ ج ۲ و علم الفقه ص ۱۸۱ ج ۲»

مسئله: په تراویحو کې امام د دوو رکعتونو نیت وتاړی په لومړي یادوهم رکعت کې یې د تلاوت سجده وویله سجده یې وکړه او دوه رکعته یې پوره کړل بیا یې د دوو رکعتونو نیت وتاړئ سهواً یې بیا هغه د سجدې آیت ولوست نو په دې صورت کې به دوهمه سجده کوي ځکه چې د تکبیر تحریمه په ویلو بل لمونځ پیل کول حکماً مجلس بدلوي «مراقی الفلاح ص ۲۸۶ فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۴۲۸»

مسئله: امام د الم سجده سورت تلاوت کړ سجده یې وکړه او بیا یې پر همدغه ځای د سهار او نورو په لمانځه کې همدغه سورت دوهم ځل ولوست نو دوهمه سجده لازمیږي «فتاوی رحیمیه ص ۴۰۴ ج ۴ الاشباه ص ۱۹۱»

مسئله: ځینې میرمنې پر قران کریم سجده کوي دا غلطه ده په دې سره سجده د تلاوت نه اداکیږي «بهشتي زیور ص ۴۲ ج ۲»

مسئله: که د سجدې یو آیت په یوه مجلس کې څو ځله وویل شي نو یوه سجده واجبیږي او که یو آیت د سجدې وویل شي بیا هم هغه آیت له بیلا بیلو خلکو څخه واوریدل شي بیا هم یوه سجده واجبیږي که اوریدونکي مجلس بدل نکړ نو یوه سجده واجبیږي د ویونکي مجلس که بدل شي او که نشي بدل که د اوریدونکي مجلس بدل شي نو پرده معتددې سجدې واجبیږي د ویونکي مجلس که بدل شو وي او کنه وي بدل شوی که د ویونکي مجلس بدل شي نو په دې صورت کې هم څو سجدې وربانـدې واجبیږي د مجلس بدلولو دوه صورتونه دي:

يو حقيقي بل حكمي كه ځاى بدل شي نو حقيقي دى او كه ځاى نكړي بدل بلكه كوم داسې كارورځيني وشي چې له هغه څخه دافهمول كيږي چې لومړى فعل اوكاريې ختم كړ اوس يې دوهم پيل كړنو داحكمي تبديل ده ،

دحقيقي مثال: ۱ دوه كوره جلاجلاوي اوله يوه كوره بل كورته ولاړشى په دې شرط چې تريو دوه ګامه زيات تګ وغواړي ۲ سپوروي پلى شي.

دحكمي مثال: دسجدې آيت يې تلاوت كړتريوه دوې زياتې ګولې ډوډۍ يې وخوړله دڅاسره تريوه دووزياتو كلمو خبرې يې وكړې ياڅملاست ويده شو ياپه پيرلو پلورلو بوخت شو ، كه تريوه دوې زياتې ګولې ډوډۍ ونه خوري ،له چاسره تريوه دوې كلمې زياتې خبرې ونكړي څملي ويده نشي بلكه په ناسته ناسته ويده شي نوپه دې ټولو صورتونو كې مجلس نه بدليږي.

مسئله: كه يو آيت دسجدې څو ځله په يوه مجلس كې وويل شي نو اختياردى چې له ټرټولو وروسته سجده كوي ياله لومړي تلاوت وروسته ځكه چې يوه سجده له خپل مخكني اووروستني تلاوت لپاره بس ده خو احتياط په دې كښې دى چې ټرټولو وروسته سجده وكړل شي «علم الفقه ص ۱۸۰ ج ۲»

مسئله: كه پريوه ځاى دسجدې آيت څو ځله ووايي نويوه سجده واجب ده كه ټرټولوويلووروسته په پاى كې سجده كوي ياپې لومړى ځل ووايي سجده وكړي بيادغه دسجدې آيت له ځان سره ووايي (لكه چې حفظ كوونكي دې ته اړوي ) اوكه ځاى بدل شو بيادغه آيت



ووايي بيادريم ځاى ته ولاړى دغه آيت يې بياووايي همدارنګه پرلپسې يې ځايونه بدلول نو څومره ځله چې يې ووايي هغومره سجدې به كوي «بهشتي زيور ص ۴۳ ج ۲ بحواله مجمع الانهر ص ۱۵۸» .

مسئله: كه چيرې يو ځاى ناست وي دسجدې څو آيتونه تلاوت كړي نو هر څومره آيتونه چې يې ويلي وي هغومره سجدې به كوي.

مسئله: په ناسته يې دسجدې كوم آيت ولوستى بيا ولاړشو خوله ځايه نبوريدلاى نه دى چيرې چې ناست ؤ پرهغه ځاى په ولاړه هغه ايت بياووايي نويوه سجده واجب ده.

مسئله: يو ځاى يې دسجدې آيت ولوست بياپه كوم كارپسې ولاړى اوبيابيرته دې ځاى ته راغلى دوهم ځل يې هغه آيت ولوستى بيابه هم دوې سجدې كوي (ځكه چې مجلس بدل شو )

مسئله: كه يو ځاى ناست وي او دسجدې آيت ووايي بياچې يې كله دقران تلاوت پوره كړ نو پرهمدغه ځاى په ناسته په يو بل كاراخته شو مثلاً ډوډۍ خوړل ، يادميرمنې وماشوم ته تى وركول ،تردې وروسته يې بياهغه آيت دسجدې ولوست بياهم دوې سجدې واجبيږي ځكه چې كله بل كارپيل كړي ګواكې مجلس بدل شو.

مسئله: دكوردكوټې يادالان په يو كونج كې يې دسجدې آيت ولوست بيابل كونج ته ولاړى هغه آيت يې ولوست يوه سجده كافي ده كه هرڅومره واره يې ووايي ،البته كه په كوم بل كاراخته كيدو وروسته يې هغه آيت ولوستى نو دوهمه سجده كول غواړي بياپه دريم كاربوختيدو وروسته يې كه ووايي نو دريمه سجده واجبيږي.

مسئله: که غټ کوروي نوپه بل کونج کې په بیابیاویلو بله سجده واجبیږي اوپه دریم کونج کې په ویلودریمه واجبیږي.

مسئله: دمسجدهم همدغه حکم دی کوم چې دې کوټې اوخونې دی که دسجدې یوآیت ځوځله ووایي نو یوه سجده واجب ده که په یوځای په ناسته ناسته یې ووایي اوکه اخوادیخواپه ګرزیدوراګرزیدو یې ووایي.

مسئله: که په لمانځه کې دسجدې یوآیت څوځله ووایي بیاهم یوه سجده واجب ده که ترټولو ویلو وروسته په پای کې سجده وکړي یایې یوځل ووایي سجده وکړي بیاپه همدغه رکعت یابل رکعت کې هغه آیت ووایي «بهشتي زیورص ۴۵ ج ۲»

مسئله: ویونکي ځای بدل نکړپریوه ځای ناست څوځله یې یوآیت ووایواما اوریدونکي ځای بدل کړچې لومړی ځل یې یوځای واوریداودوهم ځل پربل ځای نوپرویونکي یوه سجده واجب ده اوپراوریدونکي چې څومره ځله یې اوریدلی وي هغومره سجدې واجب دي.

مسئله: که چیرې په یوه سورت کې یو سړی یوآیت ونه وایي یوازې دسجدې آیت ووایي نوپه دې کې هیڅ حرج نشته اوکه په لمانځه کې داسې وکړي نوپه هغه کې شرط همدادی چې داآیت به دومره درازوي چې ددریو کوچني آیتونو سره برابروي خوغوره داده چې دسجدې له آیت یودوه آیتونه ملګري کړي ویې وایي «بهشتي زیورص ۴۵ ج ۲ بحواله مجمع الانهرص ۱۵۸ ج ۱ وشرح وقایه ص ۲۳۳ ج ۱»



مسئله: که له یو چاڅخه ډیرې دتلاوت سجدې پاته شوې وي نواحتیاط په دې کې دی چې دهرې سجدې په بدل کې پاوکم دوه سیره غنم یادهغه قیمت صدقه کړي «جواهر الفقه ج ۱ ص ۳۹۳»

دهغه آیتونو بیان کوم چې سجده تلاوت ورباندې واجبیږي

په قران کریم کې څورلس داسې آیتونه دي چې دهغوی په ویلو اواوریدلو یوه سجده واجبیږي تفصیل دهغوآیتونو دادی: ۱ دسورة اعراف په پای کې داآیة: إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِۦ وَيُسَبِّحُونَهُۥ وَلَهُۥ يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢٠٦﴾ اية ۲۰۶ پاره /۹/

۲ دسورة رعد په دوهمه رکوع کې داآیة: وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَظِلَٰلُهُم بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْءَاصَالِ ۩ ﴿١٥﴾ آية ۱۵»

۳ دسورة نحل دپنځمې رکوع دپای داآیة: وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ مِن دَآبَّةٍ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٤٩﴾ يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۩ ﴿٥٠﴾ ۴۹، ۵۰»

۴ دسورة بنی اسرائیل په دوولسمه رکوع کې دغه آیة: وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۩ ﴿١٠٩﴾ پاره اية ۱۰۹»

۵ دسورة مريم په څلورمه ركوع كې دا آية : إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُ ٱلرَّحْمَٰنِ خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَبُكِيًّا ۩ ﴿٥٨﴾ پاره ۱۶ آية ۵۸ »

۶ دسورة حج په دوهمه ركوع كې دغه آية: أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ۗ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿١٨﴾ پاره ۱۷ آية ۱۸ »

۷ دسورة فرقان دپنځمې ركوع دا آية: وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسْجُدُوا۟ لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا۟ وَمَا ٱلرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ۩ ﴿٦٠﴾ پاره ۱۹ آية ۶۰ »

۸ دسورة نمل په دوهمه ركوع كې دا آية : أَلَّا يَسْجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ۩ ﴿٢٦﴾ پاره ۱۹ آية ۲۶ »



۹ دسورة الم تنزيل السجده په دوهمه ركوع كې دغه آية: إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِهَا خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ﴿١٥﴾ پاره ۲۱ / آية ۱۵ »

۱۰ دسورة ص په دوهمه ركوع كې دغه آية: وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾ آية ۲۴ »

۱۱ دسورة حم سجده په پنځمه ركوع كې دا آية : فَإِنِ ٱسْتَكْبَرُوا۟ فَٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُۥ بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ۩ ﴿٣٨﴾ پاره ۲۴ آية ۳۸ »

۱۲ دسورة نجم په پاى كې دغه آية: فَٱسْجُدُوا۟ لِلَّهِ وَٱعْبُدُوا۟ ۩ ﴿٦٢﴾ پاره ۲۷ آية ۶۲ »

۱۳ په سورة انشقاق كې دغه آية : وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ ٱلْقُرْءَانُ لَا يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢١﴾ آية ۲۱ »

۱۴ په سورة اقراء كې دغه آيت: كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَٱسْجُدْ وَٱقْتَرِب ۩ ﴿١٩﴾ پاره ۳۰ آية ۱۹ »

یادونه: مالکیه او حنفیه د سورة حج د پاى آیت په هغو ځایونو کې نه شمیري په کومو چې د تلاوت سجده واجبیږي «کتاب الفقه ص ۷۵۵ ج۱».

## دتراويحو پر ختم حافظ ته تحفه او نذرانه ورکول

سوال: څه فرمايي علماء د دين او شرع متين د لاندې مسئلې په هکله چې د روژې مبارکې په مياشت کې حافظان تراويح ورکوي او د ختم په ورځ خلک حافظ صاحب ته څه تحفې او سوغاتونه ورکوي په عامه توګه داسې وي چې څه پيسې دده لپاره ټاکلې نه وي بلکه هغه وخت جامې، او نور يا صرف روپۍ چې څومره وي خلک يې ورکوي آيا د حافظ لپاره تحفه او هديه اخيستل روا دي؟ که حافظ صاحب تحفه واخيسته نو آيا دې قران اورونکي او اوريدونکيو ته کوم ثواب ورکول کيږي او که نه؟ آيا په تحفه اخيستونکي حافظ پسې تراويح صحيح دي؟ او آيا دده ته ثواب ورکول کيږي؟ په ځواب موږ رونا زوئ دلته سخت انتشار او اختلاف دى

پوښتونکى محمد مختار احمد سرتاګنج مظفرپور

بسم الله الرحمن الرحيم

جواب: د قران کريم ويل او اوريدل هم طاعت او عبادت دي د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دادى چې پر طاعت باندې اجرت او مزدوري اخيستل روا نه دي اخيستونکى او ورکوونکى دواړه ګنهګار دي د متقدمينو همدغه مسلک او مذهب دى خو متاخرينو احنافو د امام اعظم رحمه الله او متقدمينو په مسلک کې د وخت [illegible] او حالاتو له نظره څه استثنا پيدا کړه او توسع يعني پراخي يې



وښودله د قران د تعليم او ورزده کولو د ختميدو له ويرې يې د قران کريم پر تعليم اجرت اخيستل روا او بلل د مسجدونو د آبادى او د جماعت د پاتيدو د ويرې په بنسټ يې په اذان، اقامت او امامت باندې اجرت اخيستل جائز وبلل د روژې په تراويحو کې پر قران اورولو د متقدمينو رايه موږ ته معلومه نه ده غالباً لدې جزيي څخه متقدمين ساکت او خاموش دي په اوس وخت هم د مولانا تهانوي رحمه الله او دارالعلوم ديوبند فتوى همدغه ده چې په روژه مبارکه کې پر قران اورولو مزدوري اخيستل جائز نه دي او له مخکې څخه مزدوري ټاکل صحيح نه دي او که له مخکې دا ورته معلومه وه چې موږ به قران اوروو او په هغه کې به روپۍ راکول کيږي او اوريدونکي داګڼي چې موږ به قران واورو او موږ به څه ورکړو نو په داسې حالت کې هم په قران اورولو څه اخيستل يا څه ورکول جائز نه دي خو له دغو ټولو خبرو سره زموږ رايه داده چې که په تراويحو کې څه اخيستل او څه ورکول حرام وګرزي نو څو ورځې وروسته به د حافظانو په شمير کې کمښت راشي او لږ موده وروسته به په مسجدونو کې په تراويحو کې د قران د ختم کولو لړۍ بنده شي د روژې له دوو غړو څخه به يو غړى قيام الليل (تراويح) کمزوري شي او سوکه سوکه به په مسجدونو کې د تراويح جماعت ختم شي او چيرې چې د سورتونو تراويح کيږي په هغوى کې به هم ډير لږ خلک برخه اخلي او د روژې مبارکې دغه روښانه شپې چې په اوس دور کې د اسلام شعار بلل کيږي ډيرې به کم شي د حفظ په درجو کې به د ماشومانو شمير لږيږي او حافظان چې کله تراويح ورکول پريږدي نو قران به يې

هيرشي همدارنګه به دقران حفظ په خطر کې ولويږي او د تراويحو په اړه چې کوم صورت حال دی له هغه څخه به مونږ په نظري او فرضي طريقو غاړې نشو خلاصولای بلکه مونږ به پر واقعي او عملي صورتونو غور او فکر کوو زمونږ په خيال کې واقعي شکل هم هغه دی چې يادونه يې پورته وشوه ځکه زمونږ رايه داده چې په تراويحو کې دې دقران کريم داورولو په اړه هغه پراخي را وايستل شي کومه چې دقران د تعليم او حديث د تعليم او دفقهې د تعليم ، امامت ، اذان او اقامت په اړه را ايستل شوې ده سمه مزدروي ورسره خلاصول خو مناسب نه معلوميږي چونکه قران مختنه دی او دهغه داد ب غوښتنه داده چې دهغه پر تعليم او اورولو د پيرلو پلورلو خبرې و نشي خو داوريدونکيو دا فرض جوړيږي چې دوی دقران اوروونکي خدمت ترخپل وس زيات وکړي هغه خپل ارزښتمن وخت اوريدونکيو ته ورکړ خپلې ورځې او وختونه يې محبوس او بند کړل ځکه نو دقران دحافظ لپاره تحفه او سوغات اخيستل جائز دي په تحفه اخستونکي حافظ پسې قران اوريدل هم داجر او ثواب باعث دي او په تحفه اخيستونکي حافظ پسې تراويح کول بالکل صحيح دي او د دې پوره ثواب ورکول کيږي .

والله تعالی اعلم

منت الله رحماني غفرله

۱۲ رمضان المبارک ۱۴۰۷ ه ج

## پر همدې مسئله دلاندې علماؤ امضاګانې

محمد شمس الحق عفی عنه مدرس جامعه رحماني مونګير شيخ الحديث جامعه رحماني مونګير ۱۲/۹/۶ ه ج داجرت مسئله خو ترخيړنې لاندې راتلای شي امادتحفې په جواز کې څه شبه ده زبير احمد القاسمي استاذ فقه جامعه رحماني مونګير محمد صدر عالم غفرله دزماني دحالاتو له مخې چې کوم ګنجائش ور کول شوی هغه دفقهې سره سم دی مولانا محمد ظفير الدين غفرله مقيم خانقاه رحماني مونګير مفتی دار العلوم ديوبند ضلع سهارنپور مولانا محمد شهابدين کوثري محله دلی پور وارډ شميره ۱۲ دحضرت امير شريعت مدظله رايه دحالاتو له مخه زياته مناسبه ده دار الافتاء امارت شرعيه خانقاه مونګير ، مولانا محمد تسليم صاحب نائب ناظم جامعه رحماني انقاه مونګير ، مولانا صغير احمد رحماني استاذ جامعه رحماني مونګير ، جواب صحيح دی مولانا عبد المجيد مفتاحي جامعه رحمانی خانقاه مونګير محمد نعمت الله القاسمي مفتی امارت شرعيه بهار خانقاه رحمانی مونګير ۱۲ رمضان ۱۴۰۷ ه ج

## د نفلو جماعت کول

محترم او مکرم حضرت مفتی صاحب دار العلوم ديوبند دامت برکاتهم السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته !

ستاسو په خدمت کې عرض دی چې علماء ددين څه فرمايي په دې مسئله کې که کوم دقران حافظ د لماخوستن له لمانځه وروسته يا په تهجد کې په نفلو کې قران کريم وايي او په دې حافظ پسې ګڼ شمير لمونځ کوونکي دقران اوريدو لپاره دثواب په نيت شريک شي

نو آیا په داسې طریقه په نفلو کې قران اوریدل جائز دي که ناجائز او د امام ابوحنیفه رحمه الله په اند زیات شمیر خلک د نفلو جماعت کولای شي او کنه؟ او آیا دغو خلکو ته په داډول ثواب ورکول کیږي او کنه؟ له جواب: څخه په ګټه ترلاسه کولو موونا زوئ ستاسو ډیره مننه      فقط والسلام

المتستفتی محمد مستقیم دیوبند محله ضیاالحق

۲۳ رمضان المبارک ۱۴۰۸ھ ج

## باسمه تعالی

## الجواب بالله التوفیق

په درمختار کې راغلي دي: انه یکره ذلک لو علی سبیل التداعی بان هذه یقتدی اربعة بواحد «کمافی الدرر» ولاخلاف فی صحة الاقتداء اذلامانع (الی قوله) ولولم ینو الامامة لاکراهة علی الامام.

تردې لاندې په شامي کې راغلي: لو اقتدی به واحد او اثنان ثم جائت جماعة اقتدوبه قال الرحمتی ینبغی ان تکون الکراهة علی المتاخرین ۱۲

له دغو عباراتو څخه معلومه شوه چې له دوو دریو زیات مقتدیان که په جماعت کې له امام سره شریک شي نو د احنافو په نزد مکروه دی خو که صرف له دوو دریو مقتدیانو سره جماعت پیل کړي وروسته نور په خپله راشي په کې شریک شي او امام د هغوی د امامت نیت نه وي کړی نو د امام او د هغو دوو دریو مقتدیانو چې له اوله سره په جماعت کې شریک ؤ د دوی په لمانځه کې کراهت نه راځي بلکه



کراهت صرف پر وروسته راتلونکیو دی «هکذا فی فتاوی محمودیه ص ۱۷۱ دوهم ټوک وفی الفتاوی بدارالعلوم دیوبند»

والله تعالی اعلم

کتبه العبد نظام الدین اعظمی

مفتی دارالعلوم دیوبند ۲۴ / ۹ / ۱۴۰۸ھ ج

الجواب صحیح

حبیب الرحمن خیرابادي مفتی دارالعلوم دیوبند

۹۲۴ / ۱۴۰۸ھ ج

یادونه: له مکروه څخه مراد تحریمي مکروه دي

والله اعلم بالصواب ۲۴ / ۹ / ۱۴۰۸ھ ج